# طبي ترمینالوژي

دوکتور گل سیما ابراهیم خیل قادری

AFGHANIC





Nangarhar Medical Faculty
ننګرهار طب پوهنځی

Pashto PDF
2013

Funded by
Kinderhilfe-Afghanistan

# Medical Terminology

Dr. Gulsima Ibrahimkhel Qaderi, MD

بسم الله الرحمن الرحیم




ننګرهار طب پوهنځی

# طبي ترمينالوژي

دوکتور ګل سیما ابراهیم خیل قادری

۱۳۹۲

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | طبي ترمينالوژي |
| ليکوال | دوکتور گل سيما ابراهيم خيل قادری |
| خپروندوی | ننگرهار طب پوهنځی |
| ويب پاڼه | www.nu.edu.af |
| چاپ ځای | سهرمطبعه، کابل، افغانستان |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ |
| د چاپ کال | ۱۳۹۲ لومړی چاپ |
| دکتاب ډاونلوډ | www.ecampus-afghanistan.org |

دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې (په جرمني کی د Eroes کورنی يوی خيريه ټولنې) لخوا تمويل شوی دی.

اداری او تخنيکی چارې يې د افغانيک موسسی لخوا ترسره شوې دي.

د کتاب د محتوا او ليکنې مسؤليت د کتاب په ليکوال او اړونده پوهنځي پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبيق کوونکي ټولنې په دې اړه مسوليت نه لري.

د تدريسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړيکه ونيسئ:

ډاکتر يحيی وردک، د لوړو زدکړو وزارت، کابل

دفتر: ۰۷۵۶۰۱۴۶۴۰

ايميل: textbooks@afghanic.org



ای اس بي ان: ISBN: 978 993 6200 210




# د لوړو زده کړو وزارت پیغام

د بشر د تاريخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو کې ډير مهم رول لوبولی دی او د درسي نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کيفيت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړيوالو پيژندل شويو ستندردونو، معيارونو او د ټولنې د اړتياوو په نظر کې نيولو سره بايد نوي درسي مواد او کتابونه د محصلينو لپاره برابر او چاپ شي.

د لوړو زده کړو د مؤسسو د ښاغلو استادانو څخه د زړه له کومي مننه کوم چې ډېر زيار يې ايستلی او د کلونو په اوږدو کې يې په خپلو اړوندو څانګو کې درسی کتابونه تألیف او ژباړلي دي. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم تر څو په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او نور درسي مواد برابر کړي څو تر چاپ وروسته د ګرانو محصلينو په واک کې ورکړل شي.

د لوړو زده کړو وزارت دا خپله دنده بولي چې د ګرانو محصلينو د علمي سطحې د لوړولو لپاره معياري او نوي درسی مواد برابر کړي.

په پای کی د افغان ماشومانو لپاره د جرمنی کميټې او ټولو هغو اړوندو ادارو او کسانو څخه مننه کوم چې د طبي کتابونو د چاپ په برخه کې يې هر اړخيزه همکاري کړې ده.

هيله مند يم چې نوموړې پروسه دوام وکړي او د نورو برخو اړوند کتابونه هم چاپ شي.

په درنښت

پوهاند ډاکتر عبيد الله عبيد

د لوړو زده کړو وزير

کابل، ۱۳۹۲

# د درسي کتابونو د چاپ پروسه

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلینو !

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لویو ستونزو څخه ګڼل کېږي. یو زیات شمیر استادان او محصلین نوي معلوماتو ته لاس رسی نه لري ، په زاړه میتود تدریس کوی او له هغو کتابونو او چپترونو څخه ګټه اخلی چې زاړه دي او په بازار کې په ټیټ کیفیت فوتوکاپي کېږي.

د دې ستونزو د هوارولو لپاره په تېرو دوو کلونو کې مونږ د طب پوهنځیو د درسي کتابونو د چاپ لړۍ پیل او تر اوسه مو ۱۱۲ عنوانه طبي درسي کتابونه چاپ او د افغانستان ټولو طب پوهنځیو ته استولي دي.

دا کړنې په داسی حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰-۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتیژیک پلان کې راغلي دي چې:

*«د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کیفیت او زده کوونکو ته د نویو ، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړینه ده چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د لیکلو فرصت برابر شي د تعلیمی نصاب د ریفورم لپاره له انګریزي ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسی موادو ژباړل اړین دي، له دې امکاناتو څخه پرته د پوهنتونونو محصلین او استادان نشي کولای عصري، نویو ، تازه او کره معلوماتو ته لاس رسی پیدا کړي».*

د افغانستان د طب پوهنځیو محصلین او استادان له ډېرو ستونزو سره مخامخ دي. نویو درسي موادو او معلوماتو ته نه لاس رسی، او له هغو کتابونو او چپترونو څخه کار اخیستل چې په بازار کې په ډېر ټیټ کیفیت پیدا کېږي د دې برخې له ځانګړو ستونزو څخه ګڼل کېږي. له همدې کبله هغه کتابونه چې د استادانو له خوا لیکل شوي دي باید راټول او چاپ کړل شي. د هیواد د اوسنی حالت په نظر کې نیولو سره مونږ لایقو ډاکترانو ته اړتیا لرو ترڅو وکولای شي په هیواد کې د طبي زده کړو په ښه والي او پرمختګ کې فعاله ونډه واخلي. له همدې کبله باید طب پوهنځیو ته زیاته پاملرنه وشي.

تراوسه پوري مونږ د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ او کاپیسا د طب پوهنځیو او کابل طبی پوهنتون لپاره ۱۱۲عنوانه مختلف طبي تدریسي کتابونه چاپ کړي دي. د ننګرهار طب پوهنځی لپاره د۲۰ نورو طبي کتابونو د چاپ چارې رواني دي. د یادونې وړ ده چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هیواد ټولو طب پوهنځیو ته په وړیا توګه ویشل شوي دي.

ټول چاپ شوی طبی کتابونه کولای شی د www.ecampus-afghanistan.org ویب پاڼی څخه ډاونلوډ کړی.

کوم کتاب چې ستاسی په لاس کې دی زمونږ د فعالیتونویوه بېلګه ده. مونږ غواړو چې دې پروسې ته دوام ورکړو تر څو وکولای شو د درسي کتابونو په برابرولو سره د هیواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچر نوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره دا اړینه ده چې د لوړو زده کړو د موسساتو لپاره هر کال څه نا څه ۱۰۰ عنوانه درسی کتابونه چاپ کړل شي.

د لوړو زده کړو د وزارت، پوهنتونونو، استادانو او محصلینو د غوښتنې په اساس په راتلونکی کی غواړو چې دا پروګرام غیر طبي برخوته لکه ساینس، انجنیري، کرهنې، اجتماعی علومو او نورو پوهنځیو ته هم پراخ کړو او د مختلفو پوهنتونو او پوهنځیو د اړتیا وړ کتابونه چاپ کړو.

**له ټولو محترمو استادانو څخه هیله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه ولیکي، وژباړي او یا هم خپل پخواني لیکل شوي کتابونه، لکچر نوټونه او چپټرونه ایډېټ او د چاپ لپاره تیار کړي. زمونږ په واک کې یې راکړي، چې په ښه کیفیت چاپ او وروسته یې د اړوندې پوهنځۍ، استادانو او محصلینو په واک کې ورکړو. همدارنګه د یادو شویو ټکو په اړوند خپل وړاندیزونه او نظریات زمونږ په پته له مونږ سره شریک کړي، تر څو په ګډه پدې برخه کې اغیزمن ګامونه پورته کړو.**

**له ګرانو محصلینو څخه هم هیله کوو چې په یادو چارو کې له مونږ او ښاغلو استادانو سره مرسته وکړي.**

د یادونی وړ ده چې د مولفینو او خپروونکو له خوا پوره زیار ایستل شوی دی، ترڅو د کتابونو محتویات د نړیوالو علمی معیارونو په اساس برابر شی

خو بیا هم کیدای شی د کتاب په محتوی کی ځینی تیروتنی او ستونزی وجود ولري ، نو له دی امله له درنو لوستونکو څخه هیله مند یو تر څو خپل نظریات او نیوکی د مولف او یا زمونږ په پته په لیکلی بڼه را ولیږی، تر څو په راتلونکی چاپ کی اصلاح شی.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمنی کمیټی او دهغی له مشر ډاکتر ایروس څخه ډېره مننه کوو چی د دغه کتاب د چاپ لګښت یی ورکړی دی. دوی په تیرو کلونو کی د ننګرهار طب پوهنځی د ۲۰ عنوانه طبی کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه درلود.

په ځانګړي توګه د جی آی زیت (GIZ) له دفتر او (Center for International Migration and Development) CIM

یا د نړیوالی پناه غوښتنی او پرمختیا مرکز چې زما لپاره یې په تېرو دریو کلونو کې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړی دي هم مننه کوم.

د لوړو زده کړو له محترم وزیر ښاغلي پوهاند ډاکتر عبید الله عبید ، علمی معین ښاغلي پوهنوال محمد عثمان بابری، مالي او ادري معین ښاغلی پوهنوال ډاکتر ګل حسن ولیزي، د ننګرهار پوهنتون د رییس ښاغلی ډاکتر محمد صابر، د پوهنتونو او پوهنځیو له ښاغلو رییسانو او استادانو څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ یې هڅولی او مرسته یې ورسره کړی ده.

همدارنګه د دفتر له ښاغلو همکارانو څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې یې نه ستړی کیدونکی هلی ځلی کړی دي.

ډاکتر یحیی وردګ، د لوړو زده کړو وزارت
کابل، مارچ ۲۰۱۳
د دفتر ټیلیفون: ۰۷۵۶۰۱۴۶۴۰
ایمیل: textbooks@afghanic.org
wardak@afghanic.org

بسم الله الرحمن الرحیم

## تقریظ

د اغلې ډاکترې ګل سیما ابراهیم خیل قادري د طبي ترمینولوژي تر عنوان لاندې راټول شوی اثر مې ولوست. دا چه مونږ ټولو ته څرګنده ده چه د طب په ساحه کې زمونږ په ګران وطن افغانستان کې تر اوسه هم ډیرې لاتین او یوناني کلمې او اصطلاح ګانې شتون لري چه په پښتو ژبه ورته درستې اصطلاح ګانې نلرو او پدې لیکل شوي اثر کې نوموړې لاتین او یوناني کلمې ډیرې په ساده ډول ژباړل شوي او راټول شوي چې واقعاً هم دا یو ډیر مشکل او د زحمت څخه ډک کار دی. دا لیکل شوی اثر چه د طب په ساحه کې په پښتو ملي ژبه لیکل شوی او پکې له نویو با ارزښته مأخذونو څخه ګټه اخیستل شوې ده او لوستل یې د طب پوهنځي د محصلانو او ځوانو ډاکترانو لپاره ډیر اړین ،با ارزښته او ګټور بولم. باید یادونه وکړم چه د هرې بهرنۍ ژبې څخه خپلې ژبې ته د علمي اثارو ژباړل او د هغې راټولول ډیر سخت او مشکل کار دی او ډیر وخت او انرژۍ ته ضرورت لري. داچه اغلې ډاکتر ګل سیما ابراهیم خیل قادري په جلا وطنۍ کې هم د خپل وطن او ژبې سره مینه لرل له ورایه ښکاري او دا اوږد او مشکل مزل یې سرته رسولی دی واقعاً هم د قدر وړ بولم. ددې کتاب په نشر کیدو سره به تریوه بریده د ځوانو ډاکترانو او د طب پوهنځي د محصلانو تنده خړوبه شی هیله من یم چه په راتلونکي کې هم ورته نور علمي اثار ترتیب او نشرته وسپاري او نه ستړې کیدونکی کار وکړي. په آخیرکې زه اغلې ډاکترې ګل سیما ابراهیم خیل قادري ته د لازیاتو بریاوو او کامیابیو هیله من یم.

پوهنوال دوکتور بادشاه زار عبدالي

د خوست د شیخ زاید پوهنتون د طب پوهنځی د جراحي دیپارتمنت استاد

بسم الله الرحمن الرحيم

دغه ټيرمينولوګي يا ټيرمينولوژي د دې لپاره ليکل شوې ده چې موخه يئ د طب د زده کوونکو پېژاندنه او آشنايي له نړيوالې طبي ژبې سره چې په اناتومي کې لاتينه ژبه او په عملي (کلينکي کار کې بيا يوناني ژبه پکاروول کېږي او همدارنګه تر څو چې د انګرېزۍ ژبې کلمو يا اصطلاحات څخه بېل او وپېژندل شي او له پکارولو څخه يې په طباب کې ډهډه وشي

**يادونه:**

هغه کلمې يا اصطلاحات چې له لاتينې ژبې څخه اخستلې شوې دي په لنډيزه توګه په لاندې ډول ښودل کېږي
د لاتينې کلمې لنډيز Latein = lat.
د يوناني کلمې لنډيز Greece = gr.
همدارنګه د لاتينې او يوناني طبي ژبې
کلمات په وړو حروفو ليکل کېږي.
لاتينې کلمو کې د( سي) حرف ليکل کېږي او کاف(ک) تلفظ کېږي لکه کيست پدې معنى چې سيست نه ويل کېږې.

په يوناني ژبه کې بيا د (کې )حرف ليکل کېږي خو کاف (ک) ويل کېږ ي لکه کيست، کارسينوم او داسې نور

د (سي او اچ) حرفونه (خ يا ښ) تلفظ کېږي، لکه په انګرېزي کې چې (ش) ويل کېږي نو ځکه د پښې د شا برخې بند يا وتر چې ډېر قوي دئ او د اخيل لېګمنټ يا وتر په نامه نومولئ شوئ دئ، چې دغه ته بيا په انګرېزي کې اکيل(اشيل) وتر ويل کېږي د دغه لېګمنټ نوم ځکه ورکړ شوئ دئ چې هغه يونانئ ځلمئ چې اخيل نومېده او د جنګ مشري يې په غاړه درلوده په دغه سيمه يا د پښې د دغه بند سيمه کې دغه لېګمنټ ټپي او پريک شه او د دغه ټپ يا پرهار د درد له کبله ځخه مړ شه. همدارنګه خولوليتيازيس يا د صفراوي تيګې يا کاڼي چې په انګرېزی ورته کولوليتيازيس ويل کېږي همدارنګه د (ټې،آی،او) د حرقو يوځای تلفظ د( س)حرف په شان کېږي او نه لکه په انګرېزي چې (ش) تلفظ کېږي لکه پانکسيون(پنکشن)، فليکسيون(فليکشن)، ابدکسيون= ابدکشن

په لاتينه او يوناني ژبه کې د کلمې په پای کې د وای حرف لکه د انګرېزی ژبې نشته اويا په آلماني کې چې د آی او ئي حروف ليکل کېږي چې د وای يا آی د حروفو په شان تلفظ کېږي نو په دې توګه کېدای شی چې دې کلمو د ادا کولو لپاره په پای کې وای او يا هم آی او ئي وليکل شي اما په تلفظ يا ويلو کې کوم بدلون نه راځي اما هغه کلمې چې نسبتي حالت لري يواځې د آی تورئ يا حرف ليکل کړي چې تلفظ يې هماغه آی دئ

**ډاکتر ګل سيما ابراهيم خيل قادری**

**اپريل ۲۰۱۳**

# د طب ژبه اوس په خپله ژبه

# (د لاتينې او يوناني طبي ژبه په پښتو ژبه)

# Medical Terminology

## A

**a- , an- , un-**

دغه توري د کلمې هغه لومړي برخې،مخکښ (پيشاوند) دي
چې د يو شی نشتوالی څرګندوی، د نهی نښه ښي
Akephalo- (gr. Kephalon) = (lat. Acephalus) لکه
دې اکيفالو کلمه چې د يوناني کلمې اکيفالون څخه چې په
لاتينه ژبه کې ورته اکيفالوس يا اسيفالوس ويل کېږي
اخستلې شوې ده چې دې زېږون له وخته يا په
کانجينيټال ډول د کوپړۍ يا سر نشتوالي ته وايي
An|aemie د سرو ژوانکو يا سرو کروياتو د شمير لږوالي، د
عوامو په اصطلاح د وينې لږوالي ته انيمي وايي

A. ( Arteria) وينې هغه رګونو ته وايي چې
پاکه وينه لرونکې وی يعنی اکسيجن لرونکې وينه پکې روانه
وي چې ضرباني رګونه
Aa. (Arteriae) د پاکې وينې لرونکي ډير رګونو
يا مجموعې ته وايي
abdomen, abdominis, venter (Latinum = lat.)
Laparo- (Greece = gr.) ابدومين يوه لاتينه کلمه ده چې د
ګېډې يا نس معنی ورکوي چې په هغه کې ټول هضم
غړي يا اورګانونه ځاي لري

abdominal (Adjective) هر هغه څه چې ابدومين پورې اړه لرونکي لکه

abdominalgraviditaet = extrauteringraviditaet د ابدومين دننه حمل يا بارداری (د رحم څخه د باندې يا بهر حمل) ته وايي

abducens ( lat. Abducere) ټولونکي، لېږدونکي ته ابدوسينز وايي لکه د ابدوسينز عصب، هغه شپږم نمبر کرنيال يا د سر عصب لکه

Nervus abducens

N. VI= د دماغ شپږم عصب دئ

-duction د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې ښوونې، رهنمايي، رهبری، هدايت ته وای چې موخه يا هدف ترې په طب کې هغه عضو يا اعضا چې تنې يا د بدن محور ته نزدې شتون لري

ab- د ٍلهً يا ٍله لرئً لپاره مخکښ توری دئ

Abduction (lat. Ducere) ابدکشن له لاتينې کلمې ډوسير څخه چی په قوس کی ليکل شوې ده اخستلې شوې ده چی لرې کولو ته وايي يعنې دې بدن له مرکز څخه لرې شتون يا لرې کولو ته لکه د لاسونو پورته خوا ته جګول يا له مرکزي محور څخه بهر خوا ته لري کول چې دې اډکشن په مقابل جهت کې شتوالئ ولري ښودل شوی دئ

Abductor هغه عضلې څخه موخه ده چې د بدن د غړي ياغړو و په خوځښت کی دنده تر سره کوي

Ablatio (lat.) = 1. Amotio , 2. Amputation

د تي، تيوو ، ثدي، (Ablatio Mammae) پريکول، لری کول لکه ثديو پريکول، لري کول البته د ماما د سرطاني ناروغۍ له کبله

Amotio retinae د ریتینا بېلول،بدلول
aboral له خولې څخه لرې یا په بل عبارت دې موادو لکه درملو یا خواړو ورکړه، لېږدونه، انتقال چې د خولې له لارې نه وي،له خولې څخه لرې دې یوې بلې لارې د بېلګې په توګه دې رګ له لارې وي
peroral د خولې له لارې د موادو لکه خواړه، درمل لېږدونه یا تېرونه
Abort ( lat. Abortus) مخکې له وخته زېږون، د عوامو په ژبه زیان،له وخته مخکې د حاملګي پای ته رسیدل چې دا یا په خپل سر یا سپونتان ډول چې بېلابیل لاملونه لري او یا خو په خپل لاس(مصنوعي توګه) د یوه فیټوس چې وزن ئي له 500 ګرامه لږ او عمر ئي 22- 24 اونیو په رحم کې وي

Abscess, (lat. Abscessus) د ځوو یا چرک ټولېدلو ته وایي چې له لاتینې ژبې څخه اخستلې شوې ده
Acephalus د زېږون له وخته یا په کانجینیتل ډول د سر یا کوپړۍ نشتوالئ
acer, acris, acre, acres, acria, acrium تېره،برېکوونکې، نافذه لکه چاړه، روښانه لکه عکس
Acromioclavicularis کلاویکولار یا د ترقوې د هډوکي د عوامو په ژبه د توقک د هډوکي تیره څنډه یا برخه
Ligamentum acromioclavicularis د اکرومیوکلاویکولار تر مینځه وتر یا د نښلولو پړئ
Acromion (gr. akros) د ولي لوړوالئ، ولئ، همدارنګه د سپیناسکاپولا اخرینۍ برخه چې بهر خواته ده
Acromii = faccies articulatio acromii

ad- ( lat. ad. ) د کلمې هغه برخه ده چې یو شي
یا خوا ته نږدې کېدل بلل شوي، پهځنګ، خوا، طرف
همدارنګه سربیره پر دې، برعلاوه هم نومولی شوی دی
Adaktylie, د زېږون له وخته یا په ولادي ډول د لاس او پښو
د څو یا ټولو ګوتو انومالي یا نشتوالي ته وایي

Aduction ( lat. Adducere) نږدې کېدو ته وایئ
لکه د بدن دې یوه غړي خوځښت د تنې محور ته یا میډیان،
مرکزي برخې خوا ته
Abduction له مینځني محور یا د بدن له میډیان برخې
څخه لرې کېدلو ته وایي
Adductor هغه عضلې چې د ادکشن یا نږدې کولو
دنده په غاړه لري
Latinum = lat. لاتینه ژبه په لنډ ډول
Greece = gr. او یونانی ژبه بیا په

adeno- (Greece = gr.) = glandula (Latinum = lat.) غدې
یاغوټې، ادینو اړیکی لرونکی مخکښ یونانی کلمه ده چې په
لاتینه ژبه ورته ګلندولا یا ګلانډولا وایي
Adenitis د غدواتو التهاب ته وایي
adenoid پدې معنی چې اصلی غده نده، بلکی غدواتو ته
ورتوالي لري
Adenom (autonom adenom) د یوې غدې پاړسوب
Adenomyom د غدواتو او عضلاتو په ګډه توګه پاړسوب ته
ویل کېږي
Adenocarcinom د غدې چنګاښي یا سرطاني ناروغۍ
څخه موخه ده
Adenopathie د غدواتو هر ډول ناروغۍ ته وایي

Adenotomie د غدواتو پرانستلو یا د چړې په مرسته تر مینځه بېلول،شق کول

adeps, adepis(Lat.) = Lipo- (gr.) غوړ ، شحم
adhaesio, adhaesionis په غلطه سیمه کې د یوه شی وده کول، سرېښېدل
aditus د ننوتلو لاره، هدف په جراحی کې دې سیمی د عملیات لپاره د ننوتلو لاره ده
Aditus ad antrum پرتله ، پر مقایسه co-itus, ex-itus

adnexe (lat. Annectere) د لاتینې ژبې څخه اخستلې شوې چې د رحم نلکو او تخمدان ته وایي
Ovarium+Tuba Uterina (Lat.) = adnexe په لاتینه
ژبه په ګډه توګه تخمدان او نفیرونو ادینیکس نومول شوي
Oophoros+Salpinx (gr.) = adnexe په یونانی ژبه
Adnexitis د ادینکس التهاب ته ادینکسیتز وایي
Adnextumor د ادینکس تومور

adren/o بډوډو یا پوښتورګو تر څنګ(د پاسه) غدواتو ته ویل کېږي چې په عوامه ژبه ورته د فشار هورمون (ادرینالین) وایي
Glandulae suprarenales د بېلګې په توګه
adrenal په ادرینو پورې اړه لرونکئ
Adrenalectomie د جراحی عملیات په مرسته د بډوډی تر څنګه د غدې لرې کول
Adrenalin هغه هورمون ده چې د بډوډو تر څنګ غدو څخه مینځ ته راځی یا افراز کېږي
Adrenogenital د بډوډو تر څنګ غدو او د جنسی اورګان پورې اړه لرونکی دي یا اړه لري

adrenocorticotrop د بډوډو تر څنګه غدې د څنډې
یا دې پاسه چې دغه څنډی ته په لاتینه ورته کورتیکس وایي

Cortex (lat.) یوه لاتینه کلمه ده چې څنډې، پوستکئ نومېږي
Adynamie د قوت او توان نشتوالی ، ناتوانی
Dynamo- قدرت او توانمندی
dynamic توان، قدرت

-aemo-(greece = gr.) = sanguis (latein = lat..) وینه: ایمو
له یوناني ژبې څخه اخستلې شوې او دکلمې هغه برخه ده
چې د وینې معنی ورکوي او په لاتینه کې سانګیوز(سانجیوز)
نومول شوې کلمه ده
ښودل شوي لکه دغه لاندې بیلګې
haemato-, haemo- وینه
Aerophagie د هضمی سیستم له لارې د هوا تیرول
د هوا خوړل.
aerosol(gr. Aer) چی له یونانی کلمې ایر څخه اخستلې
شوی ده چې هوا نومول شوې ده
aerosol therapie= inhalation therapie د هوایي سیستم
له لاری درملنه

Aethiologie (gr. Aitia ) د ائتیولوژي اصطلاح له یونانی
بې ایتیا څخه اخستیلې شوې چې لاملونه نومول شوي دي
affinis, affine خپلوی، اړیکې، مناسبت
agger, aggeris دیوال، بند، سد لکه دی پزې تر مینځ دیوال ،
د پردې یا غشا پاړسوب
Agalaktie د شیدو دې پیدایښت یا افرازاتو نشتوالی

Agenesie(gr. = genesis) د پرمختګ او ودې نشتوالی چې
له یونانی کلمی ګېنېزیز یا جینېزیز څخه اخستلې شوې
کلمه ده په دې معنی چې یو اورګان یا غړئ په اصل کې
یا په مطلق ډول شتون نه لري چې د پرمختګ، جوړیدنې
او مینځ ته راتګ مقابل کې قرار لري نومیږي
Aglossie ( congenital anomalie ) د ژبی نشتوالئ
د زیږیدو له وخته
Agnathie (congintal ) د زېږون له وخته یا په ولادی توګه
د ژامې یا مکزیلا او مندیبولا نشتوالئ
-agoga مواد، وسایل، دارو، درمل، هغه شیان یا مواد چې
ښویولو یا صیقل کولو اثر لرونکئ وي
Cholagoga ښویونکی یا صیقل کوونکي مواد
Agonadismus , cong. د زېږون له وخته یا په ولادي ډول
د جنسي غړي، جنسی غدې نشتوالئ
Agoraphobie ځایې ډار یعنی له یوې سیمې، ځای
څخه ډاریدل
Agranulocytose د ګرانولوسیت د ژوانکو نشتوالئ په وینه کې
graphie د لیکلو کمزوري یعنی سم لیکل نشی کولای
چې د دماغ د لوې برخې ستونځې ځرګندوی
Akinese, Akinesie د خوځښت، ښوریدلو ستونځې
یا نشتوالئ
Kines, Kinet خوځښت، حرکت
akinetic Epilepsie هغه ډول میرګې ناروغي ده چې بې
له خوځښت او ټکانونو پېښېږي
Hypokinese د خوځښت کږوالئ، کمزورئ
Hyperkinese د خوځښت له حده زیات شتوالئ
یعنی یوه نارامه حالت چې ارامي خوند نه ورکوی

akro- (gr. Ákros ) اکرو څخه هدف په طب کې لاسونه،
پښې،پزه، زنه چې له یونانی کلمی څخه اخستلي شوي ده
چې څوکه معنی ورکوي
Akranie د کوپړي یا جمجمی نشتوالئ په غیر
طبعی، غیر نورمال ډول ته وايي
Akrodermatitis د اکرو دې سیمې د پوستکي یا
پوستکي التهاب ته وايي
Akromegalie (gr. akros) اکرومیګالي له یونانی کلمې
اکروز څخه چې معنی یې څوکه، پایلې، اخرینۍ برخه ده
اخستلې شوې چې له حده زیات غټوالئ او لویوالئ د
انسان د لاسونو، پښو، پوزي زنې
Akroparaesthesie د احساس، حساسیت لړوالئ، نشتوالئ
په اکرو سیمو کې
Akrocyanose د اکرو یا د تنې څخه د لرو سیمو
شین رنګ یا بنفش رنګ چی د اوکسیجن د لږوالی له کبله
مینځ ته راځي ویل کېږي
akut ( lat. Acutus ) اکوټ له لاتینی کلمی اکوټوس څخه
اخستله شوی ده چی تنده ، تېزه او ژر ، دفعتاً یا حاده معنی
ورکوی
chronic کرونیک یا اوږد محاله یا مزمن حالت د یوې
ناروغۍ څرګندوي

-al (Adjektive) یو صفت دئ چې یو څه اړیکې
لرونکئ، تنظیم کوونکي, طبقه بندي کول، په یوه ګروپ کې
دننه تنظیم کولو ته وايي
Ala (lat.) = anatomie په اناتومي کې د وزرونو معنی ورکوي
Ala major لوی یا غټ وزرونه
Ala minor واړه وزرونه
Alae nasi پزې یا پوزې پردې یا پرې

albus — سپین، روښانه

Albinismus — سپینوالي خوښوونکئ، سپینوالی سره مینه لرونکئ یا سپین رنګ سره مینه درلودل

Algesie — درد، خوږ (حساسوالئ )

-algie, -algesie ( gr. Algos) — دا هم د یوې کلمې هغه وروستی برخه ده چې درد، خوږ، رنځ، غم ته ویل شو ې

Analgetikum — د درد ضد درمل، د درد کرارونکي درمل

Analgesie — د هغو درملو په مرسته چې درد ورکونکي یا انالجیتکا نومول شوي دي د درد ورکول،له مینځه وړلو ته وایي

Hypalgesie — د درد لږوالئ، د درد د حساسیت لږوالئ

Hyperalgesie — د درد د حساسیت ډیروالئ پدې معنی په دیر لږ پرهار سره ډیر درد لري

algo-, -odyno- (gr. algos or odyne) — له یوناني کلمې څخه اخستلي شوې ده چې درد معنی لري

Algie, -algie — رنځ، درد

Gastralgie = syn. Gagtrodynie — دې معدی درد

Otalgie — د غوږ یا غوږونو درد

Podalgie — د پښې یا پښوو درد

Algophobie — د ناروغی په ډول یا ناروغی ډوله ډار او ویره له درد څخه

algor, algoris, (maskulin) — د سړو احساس، د چا چی ډیر ساړه کیږي

alg- — درد ښودنی د کلمې مخکنی برخه یا پیشاوند ده

Algurie — متیازو کولو (ادرار) په وخت کې د دردشتوالئ یا درد لرونکئ ادرار کول

Allergie — حساسوالئ، حساسیت

allergologie هغه علم دئ چې له حساسیت او یا
د انسان د بدن هغه برخه چې یو پردئ شئ نشي تحمل
کولائ څېړي یا ورڅخه بحث کوي

Allergologe هغه د طب ډاکتر چې د حساسیت په پېژندنه
کې ځانګړې زده کړې کړې وي یا متخصص طبیب او د
حساسیت درملنه کوي

allo- ( gr. Allgos) بل شانته، بل ډول ،بیلابیل ډولونه، پردئ

Allopathie = Homoio pathie هغې درملنې ته وایي چې کله
د یوې ناروغۍ په هغو درملو درملنه کېږي چ د هغو متضاد،
مخالف ، برعکس اثر لري یعنې له یوه حالت څخه ئي په
تدریجي ډول بل حالت ته بیایي

altus لوړ، جګ، هسک

Frons alta

Frons (lat. = anatomie) فرانس یوه لاتینه یا اناتومیکه
کلمه چې تندی، تندئ، وچولئ، پیشاني

Alveolus dentalis د غاښ کڅوړه

Amastie په کانجینیټل ډول د سینې یا ثدې د
(congenital ) غدواتو نشتوالئ

amblyo (gr. amblys) ضعیف، کمزورئ، ضعیفه بنیه

Amblyopie, Amblyopsie په لیدلو کې ستونځې، نږدې
لیدنه چې لرې نشي لیدلئ

Ambulant (lat. ambulere) له لاتینې ژبې څخه اخستلی
شوي چې ګرځیدل معنی ورکي پدې معنی چې یو ناروغ
ثبت یا راجستر شي بی لدی چی بستر شي

stationaer چېرته چې ناروغان شپه تېروي یا په روغتون
کې بستر وي

Amelie = Dysmelie د اکستریمیټیتو یا اطرافو یا د لاسونو
او پښو اندامو کې دې ودې ستونځې یا انومالي چې په دې
ناروغۍ کې یو ډول یا طبعي لینګئ یا مټ او مړوند نه وي
Amenorrhoe په هورموني ستونځو کې لکه د رحم
ناروغي او همدارنګه د حامله داري او شیدو ورکولو په وخت
کې د میاشتنی وینی تویدنې (خونریزی) نشتوالئ
mnes- حافظه، خاطرې، یادونې
a- نشتوالې علامه، منفي
Amnesie د یو څه وخت لپاره د خاطراتو یا یادونو هیرول
چې د دماغ د ټکان یا د یوې پیښې له کبله مینځ ته راځي
amnio (gr. amnion) دا هغه پرده یا غشا ده چی د
حاملګي په وخت کې هغه مخصوصې اوبه افراز کوي تر څو
چې ماشوم په خپلواکه(آزاده)توګه واوړي راواوړي او په ښه
توګه هوا واخستلي شي
Amnioscopie د امنیون د پردې او د هغې د اوبو لیدنه
او څیړنه د یوې آلې په مرسته چی امنیوسکوپ نومېږي
-centese (gr. kentesis) punktion له یونانی کلمي پنکسیون
څخه اخستلې شوې ده چې ستنې وهل نومیږي
Amniocentese (gr. amniokentesis) هغه عملیه ده چې د
ځانګړې ستنې په مرسته د امنیون پردې ته ننوځي او
او هغه اوبه راباسي چې د امبریو انومالی وپیژندله شي
Amotio or Ablatio لرې کول، پریکول
Ablatil retinae or Amatio retinae د سترګو د شبکې لرې
کول البته د ناروغي په حالت کې

Amylase (gr. Amylou) یوه یوناني کلمه ده چې لغوي
معنی ئې نشایسته لرونکي اوړه یا آرد ده او هغه انزایم دئ
(enzyme) چې پولی سکرایدونه له مینځه وړي یا تخریب کوي

an-/ana- نشتوالئ
ana- دې پاسه،تکرار
Anamnese پخواني کيسه، د ناروغي تېره شوې کيسه يا تاريخچه
Analyse چڼ کول، تحليل او تجزيه
Anatomie هغه علم دئ چې د انسان د بدن د جوړښتونو څېړنه او ترې بحث کوي ياېې څرګندوي
Anaemie يواځې وينى د سرو ژوانکو يا کروياتو لړوالي ته ويل کېږي او په لاندينيو ډولونو ويشل شوي دي

haemolytik(haemolyse) د وينې د ژوانکو له مينځه وړل يا تخريب کول
hyperchrome له هده ډير تيز رنګ
hypochrome بې رنګه يا کم رنګه رنګ
normochrome نورمال يا خپل اصلى رنګ
Anaesthesie درد د احساس نشتوالئ، بې حسي چې يا په ټوليزه (عمومي) توګه او يا خو په سيمزه توګه شتوالئ د درد، د تودوالي يا سوړوالي يا تماس په مقابل کې لري
Anaesthesiologie هغه علم ده چې د بې حسه کېدلو او د هغه د اثرات څېړي او ورڅخه بحث کوي
anal دا يو صفت دئ چې انوس (مقعد) پورې اړيکې لري
analekzem انوس د سيمې تخريش، زيږ رنګه پرهار
Analkarcinom د انوس د سيمې بده دانه يا سرطان
Analgesie د درد نشتوالئ
Analgetikum د درد کرار کوونکي يا له مينځه وړونکې دارو، درمل
analis ( lat. ) انال پورې اړه لرونکي

Sinuse anales یوه غووچه یا عمیقه سیمه د کولومنا
انالیز تر مینځ (په کاناليز اناليز کې، د ریکتوم په مقابل کې
پرته سیمه)ده

-lyse, lyt- (gr.) یوه یوناني کلمه ده چې دې کلمې هغه
برخه ده چې ټوټه کول،منحل کول،پای ته رسول معنی ورکوي
Analyse چڼ کول ، فلتر کولو تحلیل او تجزیه
Paralyse په ټولیزه توګه یا په مکمل ډول فلج یا
د غړو نه ښوریدلو ته وایي
Pleurolyse دسریښ شوي یا سره نښتلي پلورا پردې
بېلول او ازادولو ته ویل کېږ ي
Lysosomen د ژوانکو یا حجرو دننه هغه جوړښتونو
یا اورګانونو ته ویل کېږي چې په هغه کې شتون لري

Anamnese د ناروغۍ پخوانۍ تاریخچه

tom/o- ( gr. tome ) له یوناني کلمې ټوم څخه اخستلې
شوي چې پرېکشوي، درز شوي البته په جراحي
-tomie ( lat. ) په لاتینه ژبه کې بېلولو او پرېکولو ته
د چړې په مرسته ویل کېږي
-tom ( lat. ) د پریکولو آله یا وسیله لکه چاړه یا سکاپل
-ektomie پریکول، لرې کول
Anatomie لغوي معنی یې پریکول، بیاتي کول، قیچي کول
او هغه پوهه یا علم دئ چې د بدن د غړو د جوړښت
څېړنه او ښوونه کوي
Tenotomie د عضلاتو د اوتارو مینځ بېلول، پرانستل یعنی
وتر په خپل مینځ کې لرې کول تر څو چې دننه سیمه
ولیدله شي

Vasotomie د وینې د رګونو یا د رګ پرانستل یاپه خپل
مینځ کې بېلولو ته ویل کېږي

andro-( gr. aner, andros ) سړئ، نارینه جنس
Andrologie د نارینوو ناروغیو پیژندنه
Gynaekologie هغه پوهه یا علم دئ چې د ښځینه جنس
د ناروغیو او د دغه ناروغیو د درملنې لارې
څېړي او بحث ترې کوي
Anencephalie د زېږون له وخته یا کونګینیټال ډول
د کوپړئ یا سر نشتوالئ یا اکریني چې د چونګښې سر
هم ورته ویل شوي

-itis : ایتس د پرهار یا تبې، زخم معنی ورکوي
Angiitis = syn. vaskulaer inflamatorie د وینو
د رګونو پرهار یا التهاب
Angina, anginoes (Lat., angere) د لاتینې کلمې انګیري
یا انجیری څخه اخستلې شوي چې تنګي، تنګوالئ، سره
ډېر نږدې کېدل، محدود کول معنی ورکوي
Angina pectoris د ټټر یا د تورکس درد چې
د ساه تنګي (نفس تنګی) په شان درد درلودل
Angina abdomen د ګېډې یا ابدومن درد
angio- = vas د وینې رګونو ته وایي
Angiodynie دې وینې د رګونو درد ته وایي
Angiographie د رادیولوژئ په عکس یا فلم کې
د وینې دې رګونو ښودنه یا لیدنه
Angiokardiopathie د زړه او د وینې دې رګونو ناروغی
angiologe هغه ډاکتر ته ویل کېږي چې د وینې
د ناروغیو څېړنه او درملنه کوي

Angiologie هغه علم دئ چې د وينې درګونو له خيړنې
څخه بحث کوي
-om : پاړسوب، نوئ مينځ ته راغلئ جوړښت يا پديده، تومور
Angiom د وينې رګ يا رګونو کې نوې مينځ ته راغلئ
جوړښت يا تصوير
Angiomatose دا يو تصوير ده چې د يو شمير مينځ ته راغلي
نوي جوړښتونه يا تومورونه د وينو په رګونو
کې څرګندوي
Angiopathie د وينې د رګونو ناروغيو ته وايي لکه
Angiopathie diabetic د وينې د رګونو ناروغۍ په ډيابيتيک يا
د شکري ناروغۍ کې
Angiospasmus د رګونو تشنج دې رګونو شخيدل
angulus کنج يا زاويه
animal , Zoo- ژوي، ژوندي
Anio (negative Ion) منفي آيون
Kation (positive Ion) مثبت آيون

aniso- غير مساوي، نا برابره
Iso-(gr. ísos) ايزو چې له يوناني کلمې څخه اخستلې شوې
چې مساوي، په يوه ندازه معنی ورکوي چې د ان ايزو په ضد
يا مقابل کې قرار لري
Anisocytose په بېلابېلو اندازو يا غير مساوي ډول د وينې
د سرو ژوانکو شتون په وينه کې چې دا د ناروغۍ يوه مهمه
بېلګه يا نښه بلله کېږي

iso- مساوي، په همدې اندازه
isochron په يوه وخت کې، همزمان
isomorph په يوه ډول ،يو شکل، يوه قد او اندام

Form( morph-, form) شکل،ډو ل
Anhydrose د خولو پیدا کېدلو یا افراز کېدلو نشتوالئ

ankylo (gr. Ankylos) انکیلو له یوناني کلمې انکیلوز څخه
چې کوپیدل، شخ پاتیکیدل معنی ورکوي اخستلې شوې
ankylose ناروغي ډوله یا دې ناروغئ له کبله
د بدن دې بندونو شخ پاتیکیدل
-iasis یوه ناروغي چې وروسته د هغه له لاملونو
لکه( پرازیت) څخه ښکاره شي یا مینځ ته راشي او یا
اساسي نښې او سمتوم وښودل شي
Ankylostoma چنګک ډوله چینجي
Ankylostomiasis د چنګک ډوله چینجیو له کبله مینځ
راغلې ناروغي
anococcygeus په ګډه سره د انوس او کوکسیجیوز تر
مینځه جوړښتونه لکه دغه لاندې
Ligamentum anococcygeum هغه لیګامنټ یا ټینګ
پړي چې د انوس او کوکسیجیمز د هډوکي تر مینځ
اړکې ټینګوي

nularis حلقوي ، دایروي ډوله
Digitus annularis د لاس هغه ګوته چې د حلقې
یا چلې ګوتې په نامه یادیږي
anulus (lat.) یوه لاتینه کلمه ده چې ګرده حلقه،
دایره،دوره معنی ورکوي لکه دا لاندې
Annulus fibrosus
Anodontie په congenital ډول د غاښ نشتوالئ
Anophthalmie په ولادي توګه د سترګو نشتوالئ
Anopie، Anopsie ړوندوالئ، په سترګو باندې څه شئ نه لیدل

opie , optik بینا، هغه سترګې چې د لیدلو وړتیا لري
anorectal کوم چې انوس او ریکتم پورې اړه لري
Anotie د غوږ د غضروف نشتوالئ
anovulatric بې له اوولیشن څخه یا د هګئ
د ټوپ وهلو نشتوالئ البته په ښځینه جنس کې
ante- مخکې، پخوا، له مخکې، له پخوا، له لومړئ
وخت څخه، مخ په وړاندې
antebrachium د لاس لاندنی برخه چې مړوند
مټ ورته وایي
Fascia antebrachii هغه ریښې لرونکئ جوړښت
چې تینګ، کلک او قوي دي او د مړوند یا د لاس
د لاندینی سیمې د شا برخې د عضلاتو په شاوخوا کې پرته
یا یې دغه عضلې راتاو کړې ده
anterio- مخکې، د مخه، وړاندې
posterio- شاته، تر شا
anterioposterior, (in radiologie, a.-p یا AP په
رادیولوژي کې داسې په لنډیزه توګه لیکل کیږي)
anterior, anterius مخکنئ، وړاندنئ
Anteversion د لاس یو ډول خوځښت د ولي په بند یا
مفصل کې

anthelix د غوږ د غضروف تاوېدل یا انحنا په مقابل جهت
کې یعنې د نورمال حالت څخه بر عکس
anthropo- ( gr. antropos) انسان، یو انسان = homo
anti-, (gr. Anti) د کلمې هغه مخکنی برخه ده چې له
یوناني کلمې څخه اخستلي شوې او ضد یا مقابل معنی
ورکوي

Antiemetikum هغه درمل چې د استفراغ په ضد
یا کرارولو لپاره پکارول کېږي
Antiphlogistika هغه دارو، درمل چې د التهاب
څخه د ژغورنې دنده په غاړه لري
antiphlogistic هغه مواد یا درمل چې د التهاب ضد عمل
سرته رسوي، د التهاب مانع کېږي
Antisepsis (anti Mikrobial, anti infection) مکروبي
ضد، انتاني ضد
antiseptic هغه مواد چې د مکروب ضد عمل کوي
Antitoxin د زهرو ضد مواد
antrum د سوري معنی ورکوي چې موخه یا هدف ترې
سورکئ په بدن، یوه اورګان کې او هډوکي کې
Anurie د میتیازو نشتوالئ یا نه بهر کېدل، د ادرار
د بهر کېدلو یا خارج کېدلو نشتوالئ
anus, praeter naturalis په لاس جوړشوئ یا مصنوعي انوس
یا مقعد چې د جراحي عملیات په مرسته مینځ ته راځي

-aorto /aorta(Gre., aorte) اورتا یوه یوناني کلمه ده چې
د پاکې وینې یا آکسیجن لرونکې وینې اساسي رګ ته وایي
Arcus aortae د اورتا قوس
Sinus aortae , Pl. Sinus Valsalvae د اورتا د دېوال
پراخېدل یا څوړندېدل،د اورټا د والوو یا پردو شاته جوړه شوې
سیمې ته سینوس اوورټا وایي

Valva aortae د اورتا د خولې پردې، کومې چې
د خلاصیدو په وخت کي ټوله وینه له وینټریکولوم څخه اورتا
کې توېږي او دې تړلو په وخت کې بیا وینه د اورتا له لاري
او مرسته ټول بدن ته رسېږي

valva aorta insufficience د اورتا د پردو د دندې

په ښه توګه نه ترسره کېدل یا د دندې نیمګړتیاو کې چې په ښه توګه دغه پردې ښې نه تړلېږي او خوله یې نه بندېږي او په مکمله توګه وینه له وینټرکولوم څخه دې اورتا له لارې د بدن نورو سیمو ته نه رسېږي او یو څه مقدار یې بېرته په وینټریکولوم کې توېږي

valva aorta stenose د اورتا د پردو تنګوالئ چې

نشي کولای تړوله وینه له کین وینټریکولوم څخه اورتا ته ننوځي

Aorta هغه د ویني لوی او پراخه رګ دئ چې پاکه

یا اکسیجن لرونکېوینه په کې روانه وي او د زړه له کین وینټریکولوم څخه بیل یا سرچینه نیسي او بیا په بېلابېلو برخو ویشل کېږي او د بدن ټولو سیمو ته پاکه وینه رسو

Aorta abdominalis د اورتا هغه برخه ده چې په ابدومن

کې پروت دی

Aorta ascendens د اورتا هغه برخه ده چې له لاندې

خوا مخ پورته خواته پروت یا مسیر لري

Aorta descendens د اورتا هغه برخه ده چې له پورته خوا مخ

کښته پروت دی

Aorta thoracica د اورتا هغه برخه ده چې په

ټټر یا تورکس کې پروت دی

Aortitis د اورتا التهاب یا د اورتا دننه پردې یا

د موکوز طبقې (مخاطي غشا) التهاب دی

apertura سورکي، سورئ شوئ، د یوه اورګان

پرانستې خوله، پرانستل شوی

Apertura piriformis د پزې مخکني ناک ته ورته پرانستي

سوري یا د پزې سور ي

apex (lat.) خوکه، تیغه، خوکې، پای ته وایی، دې یوه اورګان یا غړي خوکه، پای

Apex nasi د پزې یا پوزې خوکه

Apex radicis dentis د غاښ دې ریښې خوکه

Aphagie د اوبو او ډوډې په تېرولو کې ستونځې

Aphasie د غږېدو ستونځې، یعنی په ناروغي اخته ناروغ شي غږېداي

Aplasie کله چې یو اورګان یا د یوه اورګان یوه برخه شتون ونلري یا دا چې وده یې نه وي کړې

Apnoe (gr. Apnous) د ساه یا هوا اخستلو د سیستم په ټپه دریدل

apnoic یو صفت یا اجیکتیف دئ چې د ساه یا تنفس په ټپه دریدلو پورې اړه درلودل ښې

apo- ( gr. Apò ) له یو شي څخه لرې کېدل، د چا له خوا څخه لرې کېدل، بهر، باندې

Apogamie (gr.) اپوګامي یوه یوناني کلمه د چې بې له جنسي یوځایوالي یا القاع څخه دې نسل ډېرېدنه، تکثیر صورت نیسي

Apokrine (gr. krinein) د ایکزوکرین غدواتو ترشحات، افرازات

Apophyse (gr. Apòphysis) لړی، نباله، ادامه، په اوسیفیکشن کې ایپیفیز ته نزدې یوه بله هسته وده کوي چې ځان له هډوکي څخه وړاندې کوي یا مخکې کوي لکه ( -phys) یوه زخه،او یا غده، اضافه غوښه، انحراف

Apoplexie (gr. Apoplexia) له یوناني کلمې اپوپلکسیا څخه اخستل شوې چې دماغي سکته یا مغزي انفارکت معنی ورکوي

appendo-, appendico- (lat. Appendix) له لاتينې کلمې
اپندکس چې لړي، نښتئ، دنباله، پیوست معنی ورکوي
Appendektomi د اپندکس پريکول یا لري کول
Appendicitis د اپندکس التهاب
appendix له لاتيني ژبې څخه اخستلي، چې
لغوي معنی ئي نښتې شوئ،ضميمه، پيوست
شوی جوړښت ته وايي چې دا هغه نرئ جوړښت ده چې
مينځ يی خالي ده او چينجي شکل لري او د وړو کولمو او
لويو کولمو د يو ځای کيدو په سيمه کې يا اليوسيکال سيمه
کې شتون لري چې کيداي شي بيلابيل غير اناتوميک ځايونه
هم ولري
appendix vermiformis چينجي ته ورته په کولمو پورې
نښتئ جوړښت ته وايي

aqua- (lat. Aqua) له لاتينې کلمې څخه اخستلی شوي
چې اوبه نومول شوي دي
aqeductus(lat.) د اوبو لېږدونکي نل ليکې
Aqueductus cerebri ( Aquaeductus) = Aqueductus
arachnoideus د غڼې جالې ته ورتوالئ
Arachnoidea mater spinalis نخاع شوکي، حرام مغز
arbor, arboris ( lat. Arbor) اربور لاتينه کلمه ده چې ونه،
درخت نومېږي
arche (gr. arche) له يوناني کلمې څخه اخستلې شوې ده
چې پيل يا لومړنئ معنی ورکوي
Menarche په نجونو کې د پېغلتوب لومړني نښه چې له
رحم څخه د وينې بهيدلو په واسطه پيژندله کېږي

Arcuatus ليندۍ يا قوس، کمان ډوله جوړښت، شکل
Arcus قوس، ليندۍ، کمان

Arcus aortae د اورتا قوس
Arcus vertebrae د ملا د مريو قوس
arcusarea قوسي سيمه، هلال ډوله سيمه

area ( lat.) سيمه، ساحه
areola وړوکی کلا،وړکی ګرده سيمه، وړوکئ دربار
چې دې هالې ډوله جوړښت ضد يا مخالف
Areola mammae د تيو (ثديو) د څوکو شاوخوا
سيمه چې رنګ يې د نورو سيمو په پرتله فرق لري
aroma (gr. àroma) , adjectiv يوه يوناني کلمه ده چې
هغه شنه يا ګياه چې ځانګړئ بوي يا ښه بوي، خوشبوي
لري نومول شوي
arrector لوړ کوونکئ، پورته کوونکئ، مستقيم کوونکئ
Mm. arrectores pilorum
arrhythmie (gr. Arrhythmos) له يوناني کلمې ارهيتموز
څخه اخستلې شوې چې د زړه نامنظمه خوځښت، رهيتم يا
حرکتونو ته وايي
ars (lat.) مهارت، آرت، هنر، فن
arterio (lat. Arteria) يوه لاتينه کلمه ده چې د ويني هغو
رګونو ته ويل کېږي چې د پاکې يا اکسيجن لرونکې يا روښانه
وينې لرونکي وي او همدارنګه ضربه وهوونکي رګونه هم ورته
ويل کېږي
artria : د پاکې وينې لرونکي رګونو جمعې ته چې
ضرباني رګونه هم ورته وايي يعني چې ضربان لري
Arteria ascendens د وينې هغه رګونه چې مخ پورته
يعني د سر خوا ته پراته دي
Arteria axilaris د تخرګ د پاکې ويني رګونه
Arteria brachialis د متې يا بازو د پاکې وينې رګونه

Arteria carotis communis د غاړې یا ورمېږ د پاکې وینې
درلودونکي ګډه یا مشترک رګونه
Arteria communicans (arteria, ramus = څانګه
یوځای کېدونکي یا یوځای شوي،ګډ ضرباني رګونه
Arteria descendens پاکې وینې هغه رګونه چې
مخ ښکته خوا یعنې پښوو په لور پراته دي
Arteria femoralis د پاکې ويني رګونه چې په ورانه پورې اړه
لري یا په ورانه کې پراته دي
Arteria iliaca په حوصلې کې د پاکې وینې لرونکي رګونه
iliaca cmmunis په ګډه توګه یا مشترکه توګه د حوصلې
د وینې رګونه چې دا بیا په دوو برخوو ویشل کېږي چې یوه
برخه یې دننه او یوه برخه یې د باندې خواته خوځښت لري

iliaca externa د ایلیاکا بهر خوا ته پروت ضربه وهوونکئ رګ
یا د پاکې وینې رګ
iliaca interna د ایلیاکا دننه خواته پروت
د پاکې وینې رګ
Arteria subclavia د ترقوې د هډوکي لاندې
د پاکې وینې پراته رګونه یا رګ
Arteria recurrens هغه په شا بېرته
شوی(بازګشت) د پاکې ويني رګ
Arteriae = plural ډیر، جمع
Ligatura arteriae د پاکې وینې د رګونو
ټینګول یا غوټه کول د جراحي د تارو په مرسته
Arteriitis د پاکې وینې درګونو التهاب
arteriola ضربه وهوونکي کوچني یا واړه رګونه
Arteriosklerse د ضرباني رګونو دننه دیوالونو یا انټیما کلک
والی د منګ د نښتلو له کبله مینځ ته راځي

Arteriospasmus د ضرباني رګونو یا شریانو
شخ والئ یا تشنج

arthro- د کلمې هغه لومړنی برخه ده چې بند، مفصل
نومولی شوی دی
Arthralgie د بند یا بندونو خوږ یا درد
Athrektomie د بند یا مفصل لرې کول
Arthritis د بند یا بندونو التهاب
Arthrocentese د بند په مینځ کې ستن وهل
یا پانکسیون د تشخیصي موادو یا پارچې دې اخستلو لپاره
Arthrodese د جراحي عملیات په مرسته
د مفصل ټینګول، کلک کول یا تثبیت کول
Arthrographie د رادیولوژي په مرسته د بندونو ښودنه او لیدنه
Arthrologie هغه علم دئ چې د بندونو څېړنه کوي
Arthropathie د بندونو له ناروغي څخه بحث کوي
Arthroplastik د جراحي عملیات په مرسته یا بند یا
په operative بندونو بیا رغونه
arthro- or artikulo- (gr. Arthron = lat. Articulatio) د اناتومي
له مخې هر هغه خوځېدونکې اړیکې چې د دوه یا ډېرو
هډوکو تر مینځ شتوالي لرې ارتیکولاسیو نومول شوی چې
عوام بند یا مفصل ورته وایي
Arthrose په تدریجي تخریبي بدلون او توګه
یا په degenerative ناروغی په بندونو کې
Arthroscopie د بندونو یا مفصل لیدنه
د ارتېروسکوپ په مرسته
Arthrotomie د جراحي عملیات په مرسته
د بندونو پرانستل یا سپړل
Articulatio(lat.) په لاتینه ژبه کې بند یا مفصل ته وایي

acromioclavicularis — د ترقوې هغه بند چې باندې یا بهر خواته شتون لري

atlantoaxilaris + atlantooccepitalis — د سر یا کوپړۍ بندونه یعني هغه بندونه چې سر له ورمیږه یا غاړې سره نښلوي

coxae — د حوصلې بندونه

cubitie — د لېچو یا آرنج بندونه

genus — د زنګانه یا زانو بندونه

humeri e — د ولي یا شانه بندونه

radiocarpalis — د مړوند یا د لاس پورتنۍ بند یا په بل عبارت د لاس او مړوند تر مېځه بند

sacroiliaca — د سکروم او الیاکا تر مینځه بند

sternoclavicularis — د ترقوي دننه خوا بندونه یعنې هغه بند چې د ترقوه او سترنوم تر مینځه شتون لري

Articulationes sternocostales — د سینې د قفس د مخې د هډوکي یا سترنوم او دپوښتیو تر مینځ بندونه

talocruralis — د پښې او پونډۍ تر مینځ بند یا د خیز اچولو بند، د پښې پورتنۍ بند

temporomandibularis — د ژامو یا الاشو بندونه

ascendens (arteria, nerv, pars) — مخ پورته لکه د وینو رګونه، اعصاب یا نورې برخې

Arteria ascendens — پاکې وینې رګونه چې مخ پورته مسیر کې پراته دي

Nervus ascendens — هغه عصب چې مخ پورته پراته دي

Pars ascendens — د بدن یا کوم غړي یوه برخه چې مخ پورته پرته وي

-ase — د انزایم بیلګه، انزایم ښودنه، نمونه او بېل شوي مواد، بېل شوي عنصر

Lipase, Phosphatase, Amylase د پانکریاس د غدې انزایمونه
Asepsis له مکروبونو او انتاناتو څخه پاکي او سوچوالئ
Aseptic reinigt پاک،سوچه، له مکروبونو څخه خالي
Asomnie بېخوبي، خوب نه درلودل

asper, aspera, asperum (lat. genitive, asperi, asperae, asperi)
یوه لاتینه کلمه ده چې هر هغه سطحه چې هواره او په یوه سطحه نه وي
Aspermie په نارینه جنس کې د جنسي ژوانکو یا سپرم نشتوالی
Asplenie, congen. د زېږون له وخته د توري یا تیلي، طحال نشتوالی
astheno- کمزوري، ضعیفه بنیه، ناتواني
Astheniker هغه انسانان یا کسان چې کمزوره او ډنګره بنیه یا نرئ اندام لري
Legasthenie په لوستلو او لیکلو کې ستونځې درلودل په دی معنی چې شخص یوه کلمه یا جمله په پوره توګه نشي لوستلي او لیکلی
Myasthenie د عضلاتو سستي او ناتواني
Asthenopie د لیدلو کمزوري، په لیدلو کې ستونځې
Asthenospermie د قوت نشتوالئ، په دې معنی چې د خوځښت سرعت یې ډېر لږ وي
Aesthesie ادراک، احساس، عاطفه

-aesthesie (gr. aisthesis) له یوناني کلمي ایستیزس څخه اخستلي شوي چې احساس، عاطفې ته وایي
Anaesthesie بې حسي ، درد نه احساس کول
Paraesthesie د حساسیت نشتوالئ

asthm/o (gr. Asthma) استما یوه یوناني کلمه ده
چې ساه لنډي، نفس تنګي نومېږي

Bronchialasthma د هوا د اخستلو یا تنفسي نلکو یا لارو
د عضلو او یا موکوز یا دنني برده یا غشا شخوالئ، تشنج

asynchron اسیکرون معنی ده چې یو وختیز نه وي،
همزمان نه وي

Ataxi د توازون او موازنې نشتوالئ، غیر موزونه
خوځښتونه او حرکتونه

Aetiologie (gr. Aitia) اتیولوژي له یوناني کلمې ایتیا
څخه اخستلي شوي ده چې لاملونه نومېږي او هغه علم
دئ چې دې ناروغي لاملونه څېړي

Atlas بار وړونکئ، حامل، د ورمېږه لومړي مري
کومه چې په سیخه توګه یا مستقیمه توګه له سر یا کوپړۍ ،
سره اړیکې لري چې به دې خاطر ورته د سر بار وړونکې
مری یا فقره وایي

Atonie د یو ځاي سره نږدې کېدو یا تقلص نشتوالئ(لکه
له خوبه ډکوالئ، خواب الودګي) ښي

Atresie هغه سورکي چې په نورمال یا طبعي ډول پرانستي
وي بند شوي،د اناتومیکو سوروکو نشتوالئ

atretic, adjactive یو صفت دئ چې د رایجو، معمولي،
مومی شیانو نشتوالي معنی ورکوي

atrioventriculaer کوم چې اتریوم (اذین ) او
وینټریکولوم (بطین) پورې اړه لري

atrium د زړه پورتنۍ کوټې یا خونې، اذین

Atrium dextrum ښئ خواته پروت اتریوم

Atrium sinistrum کینې خوا ته پروت اتریوم

tropho- (gr. trophe) تروفو له يوناني کلمې تروف
څخه اخستلې شوې چې خوړو، تغذيې ته وايي
Atrophie په مکمل ډول د يوه اورګان يا د اورګان
د يوې برخې کمزوري يا لږ کېدل چې مخکې له دې نورمال
وه لکه د عضلو، حافظي او داسي نور چې د تروفي ضد
کلمه ده
trophie(gr.) يوه يوناني کلمه ده چې تغذيه، خواړه نومول
شوي
atypic غير معمولي يا غير وصفي ډول ديوې ناروغي بهير

audio-، akust (gr. Akuein = lat. Audire) اورېدل
Audiometer يوه داسې آله ده چې د هغې په مرسته په
طبابت کې کولای شي چې د اورېدلو غږونه يا
سيګنالونه، شدت،قوت او فريکونس، اهتزازونه ونبودل شي
Audiometrie د اورېدلو ازموينه، د اورېدلو ميچ
يا اندازه کول
auditivus هغه څه چې دې اورېدلو اورګان پورې اړه لري
په اورېدلو کې مرسه يا خدمت کوي
Tuba auditiva د غوږ توله يا نلکه، ترومپت
auditus غوږ، د اوريدلو قوه، د اوريدلو حس
Sensus auditus اوريدلو حس چې هدف يې غوږ دئ

Senus gustus د خوند يا مزې حس چې هدف يې ژبه ده
Senus olfactus د بويولو غړی ياحس چې هدف
ترې پزه يا پوزه ده
Senus tactus د لمس کولو غړی يا حس
Senus visus د ليدلو حس چې هدف يې سترګې دي
Auricula د غوږ بهرنی سيمه چې محتوي يې د غوږ
نرمه، پسته برخه او غضروف

Lobulus auriculae د غوږ نرمکۍ، د غوږ هغه نرمه
پسته سیمه ده چې ښځې او ځینې نارینه یې سوري کوي
او غوږولۍ، ګوشواره په کې ځوړنده وي
auris, aures, aurium غوږ
auto- (gr. Autos) له یوناني کلمې اوټوز څخه چې خپله،
شخصاً معنی ورکوي اخستلي شوي ده
autogen په خپله مینځ ته راغلئ شئ، په خپل سر پیدا شوئ
autolog په طبابت کې ترنسپلانټاسیون
یا ترنسپلانټېشن ته وایي چې له عینه بدن یا جسم څخه
مواد اخستلي شوي وي یا یو ډول، یوشانته ژوندي
جوړښتي منشه یا سرچینه ولري

Autolyse په خپل سر یا اوتوماتیک ډول له
مینځه تلل یا هضم کېدل
autonom خپلواک، چاپوري اړه نه لرونکئ، آزاد
Autonomie خپلواکي، ازادي، استقلال
Autophobie دا یو ډول ناروغي ده چې له
یوازیتوب څخه ډارېږي
axis د ورمېږه یا غاړې دویمې مرۍ یا فقرې ته ویل کېږي

bact- = bakt- (gr. Bakterìa) له یوناني کلمې باکتریا
څخه اخستلې شوې ده
Bactrium له لاتینې ژبې څخه اخستلې شوې چې
مکروب یا انتان نومېږي
Bacteriumcoloni (lat. colonia) د مکروبونو پنډغاړئ
یا ډلیزه ټولېدنه
Bacteriumcultur (lat. cultura) د باکتریوم کښت

Bacteriurie د بکتیریوم بهر کېدل په متیازو یا ادرار کې، یا
د بکتیریوم شتون په یورین کې
bactericid مکروب یا بکتیري وژونکي، له مینځه وړونکي
-cid وژونکي، وژونکې معنی ورکوي
balano- (gr. bàlanos) د نارینه د جنسي غړي یا پینس
یا پینیز، قضیب مخکني برخه دویمه معنی یې دې بلوط
د ونې میوه ده
Balanitis د قضیب د مخکني برخې التهاب
Balanoposthitis د بالانوز او د هغه د پوستکي یا
ګلانس پینیز التهاب ته ویل کېږي
postho- (gr. Pòsthion) چې د نارینه د جنسي غړي د مخکنۍ
برخه پوښي یا پوستکئ نومول شوی دی

bi-:(doppel) دوه، دواړه، دوه چنده
biceps: دوه ښاخه یا شاخه ، دوه برخې، دوه سره
Musculus biceps دوه سره عضلي
Bifurcatio tracheae د هواي تولي چې ورته
ترخیا ویل کیږي په پای کې په دوه برخو یا شاخو ویشله
کېږي چې دغه ځای ته بیفورکشن یا بیفورکسیو وایي
bilateral دواړه خواوي، د دواړو خواو په سر
دوه مخي هدف د یوه غړي دوه مخه
bilifer (-a, -um), Ductuli biliferi) د صفراوي موادو
لارښودونکی، رهبر یا لېږدونکې لاره، نل
bilis, chole-, fel صفراوی مواد، د تریخي ترخه مواد
Billroth-11-Operation دا یو ډول جراحي عملیات دئ چې
ګستروانتستینال په پورتنۍ سیمه کې تر سره کېږي
Billroth-1-Operation دا هم لکه پورتنئ
جراحی عملیات یو ډول د ګېډې یا معدې عملیات دی

bimanuell موخه یا هدف ترې په طبابت کې په
دواړ لاسونو مانوری یا لاسي کار دی لکه په جراحي درملنه
chirotherapie = manuelle medicin, manipulation

manuell (lat. Manus) له لاتینې کلمې منوس څخه
اخستلې شوې ده چې د لاس په مرسته یو کار سرته رسول
bio- (gr. Bios ) له یوناني کلمې بیوز څخه اخستلې
شوې چې ژوند معنی ورکوي
Biochemie د هغه علم دی چې له ژوندیو او
کیمیاوي موادو څخه بحث کوي
Biologie هغه علم دی چې د ژویو ژوند څېړي
یا یې پلټي او یا بحث ترې کوي
Biopsie ، ops = لیدلو
بیوپسي له بیو = ژوند څخه او اوپسي د لیدلو معنی ورکوي

-blast (gr. Blastos = spross) نطفه، جنین، تنکی یا نه
رسېدلې ژوانکې یا جوړښتونه
Erythroblast هسته لرونکې لومړنۍ مرحله دې
اریتروسیتو ته وایي
blasto- ځوانې، نه رسیدلې ژوانکې، نطفه، جنین
Blastom یو غیر طبعی پاړسوب د ځوانو، نه
رسیدلو ژوانکو، یوه رښتیني پاړسوب ته وایي
Blastogenese د نطفې، جنین یا ځوانو ژوانکو وده، نمو او
پرمختګ
blepharo- (gr. Bléphaeov), palpebra د سترګو د ګاټو په سر
چې هغه بهرني پردې یا پلکې شتون لري او سترګه پټوي
Blepharoklonus د سترګو ډېر شدید سترګه وهل
یا پلکک زدن، د بلیفیرو ډېر شدید خوځښتونه

Blepharorrhaphie د بليفرو ګنډل، بيا رغول، ترميم
Blepharitis د بليفرو التهاب
Blepharoadenitis د بليفرو د افرازي غدواتو يا تويونکو غوټو التهاب
Blepharophimose د بليفرو د بېلدلو د سيمې يا کنجونو،د درزونو تنګوالئ
Blepharoplegie د بليفيرو سست، ځوړند پاتېکېدل يا فلج
Blepharoptose د سترګو د پورتنئ پلکې،برخې يا پورتنئ بليفرو مخ ښکته ځوړندېدل
Blepharospasmus د بليفرو شخوالئ، تشنج، کرمف
brachio- ,brachium مټ يا بازو
brachy-(gr. Brachys) براخي له يوناني ژبې څخه براخيوس څخه اخستلې شوې چې لنډ او وړوکئ معنی ورکوي
Brachybasie لکه دې پارکينسون سندروم واړه، واړه ګامونه ګام ايښودل له لنډو قدمونو سره
Brachydaktylie د لاس د ګوتو لنډوالئ يعنی کله چې د لاس ګوتې لنډې وي
Brachymenorrhoe نجونو او ميرمنو کې مياشتنئ لنډ محاله وينه بهيدنه يا مينستوريشن
Brachyoesophagus د زېږون له وخته اوايزوفاګوز په غير نورماله توګه لنډه وي چې د ګستر پورتنی برخه په تورکس کې شتون لري او ډېره ګرانه ده چې له هياټيس هيرنيا سره توپير يا وپيژاندله شي
brady-(gr. Bradys) برادي هم يوه يوناني کلمه ده چې له براديز څخه چې ورو ورو يا اهسته نومېږي اخستلې شوې ده
Bradyarrhythmie د نامنظمه خوځښتونو لړوالئ، نرموالئ ورو ورو والئ

Bradycardie د زړه د خوځښت لږوالئ، تقلصات لږوالئ یا
ورو ورو دنده سرته رسول
Bradykinesie په خوځښتونو یا حرکاتو کې لږوالئ
Bradypnoe په ساه ویستلو کې لږوالئ یا ورو ورو تنفس کول
brevis (lat.) لنډ، لنډه، کوتاه
Musculus brevis لنډه عضله
branchi/o, bronch/o (gr. Bronchos) د هوایي مري،
هوایي لارې، هوایي نلکې، ځانګي یاشاخچې
branchial هر هغه څه چې هوایي لارو سره اړیکي لري
Branchialadenom د برانښیول د غدواتو پاړسوب
یا تومور
Branchialasthma (gr. asthma, Atemnot) د
برانښیال د عضلاتو د شخوالي، تقلص او د
برانښیال د ننه پردو یا موکز برخې د پاړسوب له کبله ساه
تنګي مینځ ته راغلي ناروغي
Bronchilakarcimom د برانښیل چنګاښي
یا سرطاني ناروغی
Bronchiektase د هوایي لارو د قطر پراخېدل
چې د بېلابېلو هوایي سیستم د ناروغیو
له کبله پېښېږي

Ektasie (gr. Ektasis) له یوناني ژبې اکتازیس څخه
اخستلي شوي ده چې د برانش پراخوالئ په قطر کې
ښودل شوي، توسع
bronchiolo- د کلمې هغه مخکنی برخه ده چې
د اړیکو لرونکئ یا وصلونکئ برانښیولونو لپاره ښودل کېږي
Branchiole د برانښو یا هوایي لارو دیرې وړې غضروفي او
اخرینی ځانګې

Bronchiolitis د اخريني هوايي غضروفي ځانګو
د موکوز التهاب
Bronchiolostenose د وړوکو هوايي ځانګو تنګېدل
Bronchiolus = brochiolo واړه برانشونه
Bronchitis په ټوليزه توګه د ټولو هوايی لارو التهاب
Bronchographie د راديولوژي په مرسته د ناروغی له کبله
بدلون موندلی برانښ ښودنه
bronchoesophgagus د زېږون له وخته د برانښ
او د خوړو د تېرولو د نلکې يا لارې دې فيستول شتوالئ په
لويوالی يا په لوی يا اړولټ عمر کې
Bronchomalazie د يوه برانښ د ديوال نرموالئ
او کمزورئ ته وايي
malazie (gr. malakos) له يوناني ژبې مالاکوز
څخه اخستلی شوي چې پوست، نرم، خوړين نومېږي
Bronchopneumonie د برانښونو التهاب او د هغه دې
شاوخوا د سيمو التهاب يعنی د سږو پرانشيم ته خپور
ته خپور شوی التهاب چې په دې توګه د برانښ او د ښږو په
ګډه توګه التهاب ته ويل کېږي
bronchopulmonal کوم چې برانښ او سږو پوري
اړه لري
Bronchoskopie د يوه برانکوسکوپ په مرسته
د برانښ ليدنه
Bronchospasmolyse د برانښيل استماه د درملنې لپاره
اړينه ده چې د برانښ شخوالئ، تشنج يا سپزم د
درملو په مرسته لري شي نو دغه تګلاري ته برانکوسپزموليز
ويل کيږي
Bronchospasmolytika هغه درمل چې د برانښيل د عضلاتو
شخي يا کرمپ له مينځه وړي

Bronchospamus د برانښو (برانکو) یا هوایی لارو تشنج یا شخي

Bronchostenose د برانښ تنګوالئ

Bronchotomie د جراحی عملیات په مرسته د برانښو پرانستل

bronchus د هوایی یا تنفسي لارو بنسټیز یا اصلي څانګه یا شاخچه

bulbus (lat.) له لاتینې کلمې څخه اخستلې شوې چې د پیاز معنی ورکوي او په اناتومي کې پیاز ته ورته جوړښت یا د اورګان یوې برخې ته وایي چې ورته نوم یا متشابه نوم یې میډولا اوبلانګاټا دئ

bursa کڅوړه یا خلطې ته ورته یوه خالي سیمه، خالي کوټه یا خالي جوف له موکوز مخاط څخه ډکه جوړه شوې کڅوړې ته وایي لکه بورسا سینیوویالیز، هغه اوبه یا مایع چې د مفصل له کپسول څخه افراز کېږي

**C**

Caecum, Colon, Rektum) لویې یا غټې کولمې له درې برخو جوړې شوې: چې عبارت دی له خیکم یا کیکوم یا ړنده کولمه، کولون او ریکتوم

caeco ـ ( lat. caecus), caeko- کیکو له لاتنې کلمې کیکوس څخه اخستلې شوې چې دکلمې هغه برخه ده چې ړوند معنی ورکوي

caecal هغه څه چې خیکوم یا ړندې کولمې پورې اړه لري

Caecum ړنده کولمه چې تقریباً 7 سانتي متره اوږدوالئ لري

Caecum altum congenitum د زیږون له وخته په غیر اناتومیکه سیمه کې یعنې پورته یا لوړه سیمه کې دې خیکوم شتوالئ یا ځای

Caecum cupulaer د ړندې کولمې کوپړی، ګونبده
Caecum mobile هغه څیکوم چې غیر نورمال
اوږدوالئ لري، په تېره یو ښوریدونکې یا متحرکه ړنده کولمه
Caecus (lat.) کیکوس لاتینی ژبې څخه اخستلی
شوی ده چې ړوند معنی ورکوي د وړو کولمو پای او د لوی
کولمو پیل ته څیکوس یا څیکوم نومولئ شوی

calcaneo- ( lat. Calcaneus) = Ossa tarsi د پښې تلې، د
پښې د تلې هډوکئ
calcaneus = Ossa tarsi د پښې دې تلې یو هډوکئ دئ
caliculus خوند، مزه، ذوق، سلیقه
calix (lat.) یوه پیاله (چې ډیره له شیشی څخه جوړه
شوي، چې لاستئ ونلري)، شیشي ګیلاس، جام
ګلدان او په بدن کې د یوه خالي یا جوف لرونکی اورګان یوې
برخې ته ویل کېږي
Calix renalis دې بډوډی کالیکس، کالیکز
callositas ( lat. Callus) کلک، سخت پوستکئ یا جلد
Hyperkeratose د اپیدرمیز دې ستراتوم کورنیوم
ډېلوالي یا پاړسوب ته وایي بې له دې چې دې پوستکي
ټیټې برخې مصاب شوې وي
calor (lat.) لاتینه کلمه ده چې تودوالئ یا ګرمي معنی
ورکوي چې دې سړو ضد دی
calorie (1cal, international unitysystem = 4,1855 J) J = Joule
یو کالوري چې یو نړیوال ستندرد سیستم دئ چې
مساوی ده له 4،1855 ژوال سره
color رنګ ته وایي

calx, calcis: یوه معنی یې د پښې وروستي
برخه یا پونده. 2. دویمه معنی یې له منګ څخه جوړې شوې
تېرې دي

canaliculus وړوکئ کانال

canalis (lat. ) کانال

Canalis analis د انال کانال چې له کولومنا انالیز څخه تر
انوس پورې رسېږي

capillare د وېښتو په شان نري یا نازک د وینې رګونه

capillaris هر هغه څه چې وېښتو ته ورته نري
د وینې رګونو پورې اړه لري

capillus (lat.) یوه لاتینه کلمه ده چې اصلي وېښته، دې
بریتو وېښته ، دې سر وېښته

caput د سر یا کوپړۍ معنی لري (همدارنګه د بندونو او د )
عضلاتو سر ته هم ویل کېږي

Caput costae د پوښتۍ ککره یا سر

Caput humeri د لاس د پورتني برخې د هډوکي سر

Caput pancreatis د پانکریاس سر

Carcinoma in situ د کارسینوم هغې مرحلې ته ویل
کېږي چې تومور یوازې په اپیتیلیوم پورې اړه او یا محدود پاتې
وي او له پولې بلې خوا ته نه وي اوښتئ او همدارنګه یې
لېږدونه یا میتستاز هم نه وي ورکړئ

cardio- , cardi زړه، د زړه خوني یا د زړه بطینات

cardia د ګېډې یا معدې لومړنۍ یا پورتنۍ خوله چې
د خوړو له تولۍ یا مرۍ سره نښتې ده

caries وروست، پوده، خرابشوی، د هډوکو
د خرابېدلو پروسه لکه په غاښوو کې

caro غوښه معنی ورکوي
caroticus د پاکې وینې یا اکسیجن لرونکې وینې هغه رګونه چې سر یا کوپړۍ پورې اړه لري
Glomus caroticum دې ارتیریا کاروتز کومونیز په ویشل شوې سیمه کې یا په هغه سیمه کې چې د ستوني یا ورمېږه د وینې ګډ رګ چې په دوه برخو یو دننه خوا او بل د باندې خوا ویشل کېږي په همدغه ځاي کې د ښیموریسپتور یا شیموریسپتور شتوالي ته وایي چې د پاراګانګلیون ضد دي
Glomus د تارو کلوله، ټولنه، جمیعت، ګروه
carotis (lat. = gr.) د غاړې د پاکې وینې لرونکئ رګ، تیګې وهوونکئ رګ یا ضرباني رګ چې درې رګونه سره یوځای کېږي چې بیا ورته ارټېریا کاروتس کومونز نوم ورکول شوئ دی لکه دا لاندې
Arteria carotis د غاړېیا ورمېږ شریان
Carpometacarpeus د لاس د ورغوي د هډوکو له جملې څخه دئ یاد لاس ورغوي پورې اړه لرونکئ
Ligamentum carpometacarpeum هغه لیګمنټوم یا بندونه چې د لاس د ورغوي د هډوکو تر مینځ شتون لري
carpus = Ossa carpi د لاس ورغوئ، کف دست البته د اناتومي جوړښت له مخې
cartilagineus غضروف ډوله، غضروفي
cartilago غضروف
Cartilago arytenoidea د اناتومي کتاب د کتنې وړ دئ چې د لارینګس په سر د میشته وړو غضروفونو ته وایي
Cartilago cricoidea د لارینګس یا حنجرې یا حلق ګرده یا حلقوي غضروف
Cartilago thyroidea د جاغور یا د تیروئید د غدې غضروف

Gingivitis gravidarum = Gingivitis د غاښونو د ووريو هغه
التهاب ته وايي چې د بارداری یا حاملګي په دوره کې پېښېږي
Gangivostomatitis د غاښونو د ووريو او د خولې
د موکوز التهاب
Glandula, Pl. Glandulae افرازي یا تويونکې غوټې يا غدې
Glandulae parathyroidea د جاغور تر څنګه افرازي غوټې
Glandulae pituitaria = Hypophysis تر دماغ لاندې ځوړنده
غوټه يا غده
Glandulae seminalis = Glandula Vesiculosa
Glandulae sudoriferae د خولو يا عرق
رهبري کوونکې غوټې يا غدې
Glandulae suprarenalis د بډوډو، پوښتورګو
د پاسه تويونکې يا افرازي غوټې، فوق کليه غده
Glandulae thyroidea د جاغور غده
Glandulae vesiculosae د تڼاکو غدې، د پوکانو غدې
د مثانې غدې

Glaukom (gr. glaúkoma, glaùkòs) له یونانی کلمې
څخه اخستلې شوې ده چې خړ رنګه شين يا آبی خاکستري
رنګه د سترګو يو ډول ناروغي ده چې عوام ورته زرغون
ستوري هم وايي

gleno- (gr. ) ګلينو د يوې يوناني کلمې هغه لومړی
برخه ده چې په اصل کې د سترګه، يا د سترګو ګاټۍ
معنی ورکوي
glenohumeralis موخه يا هدف ترې ارتيکولاسيو
ګلينوهيوميراليز دئ
Ligamenta glenohumeralia

glenoidalis هر هغه څه سره چې ګلينو مخامخ
وي يا ورسره اخته وي

Cavitas glenoidalis, Cavitas glinoidalis scapulae نسبتاً
هواره يا مسطحه سطحه چې د ولي د هغه مفصل
مخ يا کاسه چې د هيوميروس له هډوکي سره په اړيکې
يا تماس کې وي

Gliacell = Neuroglia

Glioblastom ګليوبلاستوم د خامو يا نه رسېدلو
ګليا ژوانکو يو ډول ځانګړئ خبيث تومور يا پاړسوب

Gliom يو غير طبعي پاړسوب چې د ګليا ژوانکو څخه سر
چينه نيسي چې تر ډېره په دماغ يا مغزو کې
ځای نيسي

Glomerulonephritis د بډوډو هغه التهاب ته وايي
چې د وينې د رګونو له کانالونو څخه سر چينه نيسي

Glomerulum د بډودي واړه شيان يا اجسام

Glomerulus (lat. Glomus) = syn. Kapillarkanals له لاتينې
کلمې ګلوموس څخه چئ د تارو کلوله، دسته
جميعيت ته وايي خو په طب کې موخه ترې د وېښتو په
شان نرې د وينې رګونه (عروق شعريه يا کانالونه)په بډودو
کې دئ چې ورته نوم يې د بډوډو د څنډو دې مالپيجي
اجسامو کاپيليلارکانالونو وايي

Glomus (lat.) لاتينه کلمه ده چې په طب کې
نلکې يا کانالونه نومول شوي

Glomus caroticum د ارتيريا کاروتيز کومونوز د بېلېدلو
په سيمه کې د شيموريسپتورونو شتوالي ته ويل کېږي

Glossa ژبه، زبان

glosso-(gr. glóssa): د ژبې په اوړدو کې يو اوږد درز چې
ژبه په اوږدو په دوه برخو ويشي

Glossitis د ژبې التهاب، د التهاب له امله

د ژبې په موکوز کې بدلونونه

Glossodynie د ژبې درد، د ژبې سوځیدل

Glossoplegie د هایپوګلوزوز د عصب

دې ژوبلېدنې له کبله د ژبې د عضلې فلج په مکمل ډول

مینځ ته راځي چې په غړېدو او د خوړو او اوبو په تېرولو کې

ستونځې او خنډونه پېښېږي

Glossotrichie یوه وېښته لرونکې ژبه

glottis = syn. Cavitas larxngis = glottis vocalis د غړ

یا غاړو د پیدا کولو پردې چې د حنجرې په خوله ، هغه

وړوکې ژبکۍ چې د حنجرې په پورتنۍ برخې کې قرار لري

gluko- or glyko-(gr. Glykýs ) = gluco-; glyco- = Glucagon

خواږه

Glukose د انګورو خوږه، ډیکستروز یې ورته یا مشابه

نوم دئ، بوره، شکره

Glukoseurie ګلوکوز یا دې خوږې د باندې وتل

له میتیازو یا ادرار سره یا خوږه لرونکئ ادرار

gluteus (musculus) د وینې د رګونو عضلې

gnatho- (gr. gnáthos = mandibula, maxilla ) پورتنۍ او

لاندنۍ ژامې

gono- = genu زنګنونه، زانوها

Gonitis = Gonarthritis د زنګانه د بند یا مفصل التهاب

gonado- (gr. gone) له یوناني کلمې ګان څخه چې

جنسي اورګان، جنسي غدې، مینځ ته راوړلو، جوړولو

وروستۍ نسل، اولاد ته وایي

Gonadae (Ovarium او Testis) غدې، ښودنه، جنس
جنسیت خوټې او تخمدان
Gonadae dysgenesie ګوناډونو په وده یا پرمختګ کې
ستونځې، تاخیر په دندې یا د دندې د سرته رسولو نشتوالی
gonadotrop هغه هورمون یا یو هورمون چې ګوناډونه
د دندې ترسره کولو یا فعالیت ته د تیارولو لپاره هڅوي یایې
فعال کوي
Gonorrhoe یوه جنسي ناروغي ده چې عوام ورته
سوزاک وايي چې بېلا بېل لاملونه لري
gracilis (lat.) ډنګر، نرئ، سست، ناتوانه
Musculus gracilis نری عضله یا ماهیچه

granulo- (lat. Granum, Granulum) دانه،غله، تخم، هسته،
وړې دانې
Granulocyt لایکوسیتو پورې اړه لرونکې، د پولیمورف یا
بېلابېلو، مختلفو کوچنیو هستو لرونکې ژوانکې
Granulocytopenie د ګرانولوسیتو لږوالئ
په وینه کې یائي لږجوړېدنه د هډوکو په مغز کې
Granulocytose په وینه کې له نورمال یا
فزیولوژیک حالت څخه د ګرانولوسیتو د شمیر ډېروالئ
granulatio ( granum) تخم، دانه، هسته
granulosus =granulum له ډېرو کوچنیو هستو څخه ډکه ژوانکه

Gravida (lat.) بارداره ښځه، حامله داره ښځه
graviditas, graviditaet حامله داري، حاملګي
Gravis (lat.) دروند، ډېر وزن لرونکئ
Griseus (lat.) د هیرو په شان رنګ، خاکستري رنګ
gustus (lat. ), substansive
Sensus gustus

-gyn ښځینه جنس ،ښځه
gynaeko-, gyno-(gr. gyné, gynaikós) یوناني کلمه ده چې ښځینه معني ورکوي
Gynaekologie هغه علم یا پوهه ده چې د ښځینه ناروغیو د څېړنو څخه بحث کوي
Gynaekomastie په نارینه جنس کې یوې یا دواړو خواو د تیوو یا ثدیو غټوالئ یا د ښځینه ډوله تیوو شکل یا ثدیو فورم شتوالئ
Gynaekotropie = Gynaekotropismus هغه ځانګړې ناروغۍ ته وایي چې ښځې پرې اخته کېږي یا ښځې مصاب کېږي
Gyrus (gr. Gyros), Pl. Gyri دوره، تاوېدل، انحنا، په تېره بیا د مغزو یا دماغ انحنا

**H**

Haematemesis وینه ګرځونه، ,وینه لرونکې کانګې یا استفراغ، د ګستروانټېستېنال سیستم د پورتنۍ سیمې په تازه خونرېزۍ کې وینه روښانه سوررنګه وي او کله چې د معدې له تیزاب یا اسید سره ګډه یا مخامخ شي نو بیا هیماتین جوړېږي نو هغه وختبیا هلته د وینې رنګ تور رنګه یا د کافي یا قهوئې رنګ پیدا کوي
Haemangiom د وینې د رګونو تومور، پاړسوب
Haemangiomatose د یو ډېر شمیر هیمانجیوم یا هیمانګیوم پیدا کیدل یا مینځ ته راتګ چې په اصل کې د بېلا بېلو ارثي ناروغیو له کبله د بېلګې په توګه د بلو-روبر- , نیویوز-سیندروم، هیپیل-لینداو-سیندروم او داسې نور
Haemarthros د وینې ټولېدنه یا د وینې ارګوز په بندونو یا مفصلونو کې

Haemato- = Haemo- وينه، خون

Haematogen هرهغه لاملونه يا ناروغۍ چې وينه ورسره مخامخ وي يا اړيکې لري

Haematokrit د وينې د ژوانکو برخه يا مقدار په وينه کې، سهميه په ټوله وينه کې

Haematom د وينې ټولېدنه، د تراوما يا ترضيض له کبله د وينې ټوليدنه دې بدن په پستو يا نرمو جوړښتونو کې او يا په يوه فزيولوژيکه، پخوانۍ جوړه شوې تشه يا خاليگاه کې لکه هيم ارتروز، هيموتورکس او داسې نور

Haematometra (gr. Mètra) په يوټيروز يا رحم کې مينسټرويشن د وينې ټولېدنه د سيرويکال د تنگۍ له کبله په تېره بيا د سيرويکال په اټيريزي کې

Haematopathie د وينې ناروغۍ

Haematopneumothorax په تورکس کې په تېره بيا دې دواړو پلوراو په مينځ کې وينې او هوا ټوليدنه

Haematopoese د وينې جوړېدنه

-poese (gr. poieín) له يوې يوناني کلمې پويئن چې جوړونه، مينځ ته راوړنه معنی ورکوي

Haematosalpinx د وينې ټوليدنه په سالپنکس يا د هگئ لېږدونکې نلکو کې

Haematothorax د يوې يا څو پوښتيو د ماتېدو له امله د پلورا مينځ يا جوف له وېني ډکيدلو ته وايي

Haematotympanon د وينې ټولېدنه د غوړ په مينځنۍ سيمه کې

Haematurie وينې شتوالئ په متيازو يا يورين کې

haemo- وينه، خون

Haemodynamik

د مریو لرونکي یا فقراتو لرونکي ژویو Haemoglobin (Hb)
یا حیواناتو وسپنه لرونکې،آکسیجن لېږدونکې کروموپروتیئن
ته ویل شوي، همدارنګه وینې ته د وینې رنګه کولو مواد
هم ورته ویل شوي
په یورین کې د هیموګلوبین Haemoglobinurie
یا وینې د رنګه کولو د موادو وتل یا بهر کېدل
د وینې د سرو ژوانکو د نازکه پردې Haemolyse
یا میمبران منحل، ټوټه کېدل یا تخریب کېدل
د وینې د سرو ژوانکو لږوالی Haemolytic anaemie
یا کمخوني چې د وینې د سرو ژوانکو نه جوړیدنه په یوه
غټ یا لوی شوي توري، طحال له کبله مینځ ته راځي
د وینې یو ډول ناروغي ده Haemopathie = syn. Haemophilie
چې په هغې کې وینه نری کېږي او بیا وینه
په بهېدلو پیل کوي (خونریزي) او هغه داسې چې د هغو
فکتورونو نشتوالئ دئ چې د وینې په ټینګوالي یا لخته کولو
کې مهم رول لوبوي او په دوه ډوله ده چې یوه یې هیموفیلي
ده چې لومړنئ ډول یا الف یې د اتم نمبر فکتور د A,B
نشتوالي له کبله او په ځوانو هلکانو کې لیدل کېږي او دویم
نمبر یې بیا د نهم نمر فکتور د نشتوالي له کبله مینځ ته
راځي چې په نجونو کې لیدل کېږي د یادونې وړ ده چې
هر یو ل دغو فکتورونو څه یو په بل اثر اچوي او یو بل فعال
کیدو ته هڅوي او دغه فعال کیدل هم د بهرنیو یا اکستینسیف
لاملونو او هم د دننه یا انتینسیف لاملونو له کبله پېښېږي
ځرنګه چې په اصل کې باید دولسم فکتور فعال شي تر څو
چې وینې د لخته کېدو پروسه پرمخ لاړه شي، دولسوم فکتور
بیا یولسم قکتور فعال کوي او یولس بیا نهم او نهم بیا لسم او
په همدې ډول پروسه روانه ده تر څو چې فیبرین فعال او وینه
لخته، ټینګه یا آمبولي شي او له خونریزی څخه ډه ډه وشي

Haemoperikard = syn. Perikardtamponade د تراوما
له کبله مینځ ته راغلي کواګل یا د وینې ټولېدنه د زړه د
شاوخوا په کڅوړه یا پېریکارد کې
Haemoperitoneum = syn. Haemaskos د وینې ټولېدنه
د ابدومن په آزاده جوف کې چې یا په دننه کې د جوف
لرونکې غړو دې چاودېدنې او ژوبلېدنې له کبله، او همدارنګه
دې اکستراپوټیرین ګراویډیټیټ یا د رحم د مینځ یا جوف ځخه د
باندې حمل له کبله پېښېږي

Haemopoese د وینې جوړېدنه
Haemoptoe د وینې توکول د ټوخې سره
په ډېره کچه که چېرې د وینو د رګونو تخریش یا چاودېدنې له
کبله چې د سږو د ځینو ناروغیو او تومورونو له کبله پېښېږي
Haemoptyse وینه لرونکې سپوتوم یا له ټوخي
سره لږ شانته یا لږ مقدار وینه توکولو ته وایي
Haemorrhagi (gr. ) وینه ورکول، وینه بهېدنه

Haemorrhoid (gr. Hìmorroìdes) له یونانی کلمې ځخه
چې د وینې بهیر نومولئ شوئ خو هیموروئید د ارتیریا
ریکتالیز سوپریور د ځانګو پراخوالئ د غوټو په شان ته
ویل کېږي
Haemostase د وینې درول یا توقف چې
د درملو یا د جراحي عملیات په مرسته تر سره کېږي
Hallux د پښې لویه یا غټه ګوته
Hamulus (lat.) وړوکي چنګکونه لکه هاملوس پتیروګوئیدیوز
Hamulus pterygoideus
hamus چنګک
Hekaton = 100

Helix (gr.) قاتېدل، تاوېدل، انحناُ، د غوږ د پکې انحنا
بهر خواته هیلیکز وايي

hemi-:(gr., hemysis ) یوه یوناني کلمه ده چې
د کلمې هغه برخه جوړوي چې نیمه، نیمای، یوه خوا یا یو
طرف معنی ورکوي

Hemianopie= syn. Hemianopsie یوې خوا یا
نیمايي ړندیدل، په یوه سترګه ړندیدل

Hemigastrektomie د ګستر نیمايي برخې پریکول
یا ریزکشن

Hemihepatektomie د لړمانه نیمايي پرېکېدنه(ریزکشن)

Hemikranie د سر د نیمايي برخې درد، نیمسري

Migraene

Hemiparalyse نیمايي تنه یا بدن په ټولیزه یا مکمله توګه
نه ښوریدل، احساس نه درلودل،نه کول،یا فلج

Hemiparese په انکامپلیټ یا نامکمله توګه د بدن
د نیمايي برخې فلج

Hemiplegie کله چې د بدن یا تنې نیمايي برخې یا
یوې خوا فلج په مکمله توګه وی ویل کېږي

Hepar ( gr.) لړمون، ینه، جګر

Hepar adiposum غوړین لړمون، شحمي لړمون

Hepatalgie د لړمانه درد

Hepaticus = Ductus hepaticus communis هغه څه چې
لړمانه پورې اړه لري لکه د لړمانه مشترکه لاره یا کانال

Hepatikoduodenostomie د لړمانه او ډیوډینوم
تر منځ نوې اړیکې د جراحي عملیات په مرسته

Hepatikoenterostomie د لېرمانه او کولمو په تېره
د ډوکتوز هیپاتیکوز او جېجونوم تر مینځ اوپراتیفي نوي اړیکه یا اناستوموز ، لاره
Hepatikolithotomie د هیپاتو په هغو لارو یا ځایونو کې چې تیګې شتون لري د هغه د لرې کولو په خاطر دې جراحي عملیات په مرسته سپړل یا پرانستل کېږي
Hepatikotomie د لېرمانه پرانستل
Hepatitis, (alkoholic, toxic) د لېرمانه التهاب چې لامل یي تر ډېره حده الکول او زهري مواد وي
hepato- (gr.) یوناني کلمه ده چې ینه یا لېرمون معنی ورکوي
Hepatocolicus
Ligamentum hepatocolicum
Hepatodynie د لېرمانه درد
Hepatogen هر هغه څه یا ناروغی چې له لېرمانه څخه سرچینه نیسي
Hepatolienal د لېرمانه او توري یا طحال نوې اړیکه
Hepatom د لېرمانه هر ډول لومړني تومور ته که هغه سلیم او یا خبیث وي نومول شوئ
Hepatomegalie د لېرمانه غټوالئ، لویوالئ
Hepatoptose خوځېدونکئ لېرمون، د لېرمانه غرقېدل د بیلګې په توګه انتېروپتوز، پولمونال امفیزیوم
Hepatose د بېلابېلو لاملونو له کبله د هیپاتو ناخوالې یا ژوبلېدنه
Hepatotomie د لېرمانه پرانستل
hepta = 7 = د اوه عدد

herba (lat.) شنه، ګیاه، نباتات
herba mala (pl. Herbae malae)

Herniorrhaphie, Bruchoperation چوره یا اختناق ګنډل او
ترمیم د جراحي عملیات په مرسته

hetero- (gr. héteros) هېټرو له یوناني کلمې هیتروز
چې بل ډول، توپیر لرونکئ، مختلف ډول
Heterochromie بېلابېل رنګونه، مختلف رنګونه
heterogen بل ډول، مخالف ډول، مخالف جنس

Heterotop(gr. ) = Transplantation په یوه بل ځای یا بله
سیمه کې
Heterotopie /Dystopie وده یا پرمختګ په
غیر معمولي توګه یا یوې غیر اناتومیکې سیمه کې، یا
په یوې بلې سیمه کې
hex = 6 = د شپږ عدد
Hidradenitis د خولو دمینځ ته راوړلو یا افرازي
غدواتو التهاب، آبسه

hidro-(gr. hidrós) هیدرو له یوناني کلمې
هیدروز څخه چې خولې یا عرق نومېږي اخستلي شوي
hidradeno- د خولوو غده یا غدې
Hidradenom یو پاړسوب ته ورته غیر طبعي جوړښت، د خولو
سلیم ادینوم له ډېرو افرازاتو سره، غیر نورمال جوړښت چې
پاړسوب ته ورته وي
Hidrorrhoe د خولو روان بهیر، جریان عرق
hilus (lat.) هیلوس یوه لاتینه کلمه ده چې په اناتومي
کې د وینې د رګونو او اعصابو پنډغاړي یا خلیج، د یوځایکېدلو
نقطې ته وایي، په یوه اورګان کې یو وړکئ شانته ټولېدنه
د وینې د رګونو او اعصابو سیمه نوموله شوې ده لکه هیپاتو،
سپلېن، پولمونو کې

histo- (gr. histós = Tissue) جوړښتونه، بافتونه
Histologie هغه پوهه ده چې د بدن د جوړښتونو څېړنې کوي
Histopathologi e هغه پوهه یا علم ده چې د بدن
د جوړښتونو هغه بدلونونه چې د ناروغۍ له امله مینځ ته
راځي څېړي

holo- (gr. hólos ) ټولې، ټولیزه، مجموعي، مکمل
holokrin هغه غده چې د ژوانکو دننه محتوي په
ټولیزه یا مکمل ډول له مینځه ځي یعني ژوانکې مړې کېږي
او له سیکریت یا افرازاتو څخه ډکېږي

homo (lat.) هومو په لاتینه کې نارینه ته وایي
اما دلته ترې موخه انسان دئ چې له یوناني هومو څخه چې
یوشان یا یو جنس معنی لري باید وپېژاندل شي یا تفریقي
تشخیص وشي
Homo fortis
homo- (gr. homoios) یو شانته، یو ډول، په ټولیزه توګه
یو شانتوالئ
Homogen یو شانته،یو ډول توب، که دا د رنګ، جنس، یا
جوړښت له مخې وي
Homogenitaet له یوناني کلمې څخه چې یوشانته، یو
جنس یا همجنسه ته وایي لکه دوه نارینه
یا دوه ښځې چې په خپل مینځ کې یو ډول دي
Homolateral په هماغه خوا کې، در عین طرف
Homolog یوشانته لکه په ترانسپلنټېشن کې
دا اصل په نظر کې نیول
Homonym د کلمې یو ډولوالئ یا دې یو ډول یا ورتوالئ
onym نوم ورتوالي ته وایي

homoeo-, homo- یو ډول، ورته والئ
Homoeopathie یو ډول ناروغي، یو بل ته ورته نا روغي

homoio- (gr. homoìos) ورتوالئ، متشابه
homoiothermie کله چې د بدن حرارت یا تبه یوشانته یا په یوه اندازه پاتې وي
horizontalis د ترازو په ډول یا د ترازو په استقامت
Hormon : هورمون هغه کیمیاوي جوړ شوي مواد په بدن کې دې چې د ډېرو مهمو مخکنیو بدلونونو ځخه ورسته د وینې له لارې لېږدول کېږي او د موادو په بدلون یا میتابولیزم کې ستر رول لوبوي
adrenocoticotropen = Adreno Cottiko Tropen Hormon (ACTH)
gonadotropes ګونادوټروپیز هغه پروسه ده چې کله چې یو هورمون د هورموني غدو دندې راپاروي یا تحریک کوي
thyreotropes د هیپوفېز یو هورمون ده چې د ټایروئید غده یا د جاعور غده راپاروي یا سټیمولېرټ، تحریک کوي

human (lat. humanus) انساني
Humaninsulin انساني انسولین
Humanmedicin انساني طب
humerus د لاس د پورتني برخې هډوکئ، هغه هډوکئ چې دولي او لیچې تر مینځ پروت دئ
Caput humeri د هومیروس کوپړي یا سر
Humerufraktur د هومیروس د هډوکي ماتیدل

hydro-(gr. Hýdor = lat. equa) اوبه
Hydrocephalus له اوبو ډکه ککره، د دماغ د اوبو زیاتېدل له نورمال حالت ځخه

Hydronephrose د اوبو ټولېدنه د بډوډو په
خالي جوف یا سیستم کې

Hydroperikard د اوبو ټولېدنه د زړه په خلطه
یا پوښ کې چې پېریکارد نومېږي

Hydrophil اوبو سره مینه درلودل، د اوبو اخیستلو لپاره تمایل

Hydrophob له اوبو څخه لرې کېدل، د ابو په
مقابل دفاعي حالت مینځ ته راوړل

Hydrophobie ناروغي ډوله ډاریدل له اوبو څخه یا هغه
ناروغي ده چې له اوبو څخه وېره یا ډار لري

Hydrosalpinx د مایعاتو ټولېدنه په سلپینکس
یا دې هګۍ د لېږدونې نلکې یا لاره

Hydroureter په حالب کې د اوبو ټولېدلنه
د حالب احتباس د ځینو عواملو له کبله لکه تیګې یا نور هغه
عوامل چې د دغه لارې د بندېدو لامل ګرځي

Hymen د پېغلتوب پرده، د بکارت پرده په نجونو کې

hyo- , Os hyoidium دا د کلمې هغه لومړۍ برخه ده
چې دې هیوئیدیوم د هډوکي لنډېز ښي

Hyoglossus په اناتومي کې د هیوئیدیوم د هډوکي څخه
تر ژبې پورې کش شوي جوړښت لکه لاندې عضله
Musculus hyoglossus

Hyoideus په اناتومي کې هر هغه څه چې
د ژبې بیخ یا د هیوئیدیوم هډوکي پورې اړه لري

Hypakusis (gr. Akoseis) په اورېدلو کې ستونځې، د اورېدلو
د حس د قوې لږوالئ

Hypalgie د درد په حساسوالي، احساس
کې لږوالئ، کموالئ

Hypalgesie = Hypopathie د خوږو یادرد د احساس
لږوالئ
hyper (gr. hypér ) له حده ډیر، زښت زیات، ډیر زیات
Hyperaemie سوروالئ، له حده زیات له وینې ډکېدل،
دوینې زیاتوالئ په یوه اورګان کې
Hyperaesthesie ډیر حساسوالئ د درد ، تودوالئ
او په لږ تماس سره سخت حساسوالئ ښـي
Hyperalgesie د درد په احساس کې ډېروالئ یعنی د درد
تحمل ورته ډېر ګران وي
Hyperemesis له حده زیاتې کانګې، استفراغات
Hypergalaktie له حده زیاته د شیدو جوړیدنه، تولید
Hyperglykaemie د خوږې یا شکرې لوړوالئ یا زیاتوالئ په
وینه کې
Hyperkinese له حده زیات خوځښتونه، حرکتونه
نارامه خوځښتونه
Hyperlipidaemi په وینه کې په ډېر کچه د غوړو
یاشحم شتوالئ
Hypermenorrhoe له حده زیاته د میاشتنئ وینې بهېدنه
په ښځینه جنس کې
Hypermnesi(gr.) د حافظې ډېروالئ، د ډېرې اوچتې
حافظې درلودل
Hyperodontie له نورمال حده دشمیر له مخې
د ډېرو غاښو درلودل
Hyperopie= syn. Hypermetropie پراخه لیدل، وسیع لیدنه
Hyperparathyreoidismus د جاغور د خنګ غدو
دې دندې ډېروالئ چې په پای کې د پاراټ هورمون
ډېر جوړېږي یادغه غدواتو کې د دندې زیاتوالئ
Hyperplasie(gr. plássein شکل، جوړښت) = syn.

Hypertrophie د یوه اورګان د جوړښتونو غټوالئ د ژوانکو
د شمېر په حساب بې له دې چې د ژوانکو په حجم کې
بدلون راشي

Hypersomnie(lat. Somnus) د خوب یوه ستونځه ده چې
د ورځې له خوا ډېر خوب ته تمایل شتون ولري، ډېر خوب
ته د ضرورت شتوالئ

Hyperspermie د شمېر له مخې د سپرمو ډېروالئ
چې اوس دا کلمه ډېره نه پکارول کېږي

Hypersplenismus توري یا طحال له حده زیات فعالیت او
عمل چې د سپلین د غټوالئ، د وینې دژوانکو
لږوالئ او د هډوکو د کار او دندې ډېروالئ چې په پای کې
انیمي یا د وینې لږوالي او ډېرې نورې ستونځې مینځ ته
راتلونکې وي

Hypertonie = syn. Hypertonus , Hypertension له نورمال
حده دوینې د فشار لوړوالي ته وایي

Hyperthyreose د جاغور یو ډول ناروغي ده چې
دې هغه له امله د جاغور د غدې یا تېروئید د غدې
هورمونونه ډیر زیات جوړېږي یا تولید کېږي

Hypertonus له حده زیات تقلص یا د یوه اورګان
د عضلاتو سره نزدې کېدل

Hypertrichose له طبعي ډول څخه پرته په بدن
کې د وېښتوو ډیرښت یا ډیر شتوالئ

Hypertrophie یوه اورګان د جوړښتونو غټوالئ د
ژوانکو د حجم دې غټوالي په اساس بې له دې چې
د ژوانکو په شمیر کې بدلون راشي د ډېرو خوړو خوړل

hypo- unter(Norm) له نورمال حالت څخه لاندې، ټیټ

Hypodermis = Tela subcutanea لغوي معنی یې تر
پوستکي لاندې ده

Hypodentie د غاښونو د شمیر لږوالئ نسبت نورمال حالت

Hypogalaktie په پوره یا کافي ډول د شیدو نه جوړیدنه یا نه افراز کیدل

Hypoglykaemie د خوړې یا شکرې د اندازې یا مقدار ټیټوالئ یا لږوالئ په وینه کې

Hypohidrose د خولوو یا عرق په جوړېدلو یا افراز کې لږوالئ

Hypokalcemie نسبت نورمال حالت څخه په وینه کې د کلسیوم د مقدار لږوالئ

Hypokinese په خوځښت کې ستونځې لږ حرکتونه

Hypolipidaemie په وینه کې د غوړیو یا شحم د شتوالئ د اندازې لږوالئ

Hypomenorrhoe د مینستروشن د وخت د وینهې بهیدنې یا خونریزی لږوالئ یا ستونځې

Hypomnesie د حافظې لږوالئ یعني د حافظې ستونځې او د ډیرو لږو شیانو یا خاطراتو په یاد راوړل یا ساتل

Hypoparathyreoidismus د پاراتیروئید دې غدې د دندې یا وظیفې د کچې لږوالئ

Hypophyse (gr.) =syn. Glandula pituitri دماغ پورې ځوړنده غده نومولە شوې

Hypoplasie د یوه اورګان په پوره توګه نه وده یا نمو کول یا کوچنئ پاتې کیدل د ژوانکو د شمیر د لږوالئ په اساس پدی معنی چې ژوانکې د شمیر له مخې لږ وي

Hyposomnie د خوب لږوالئ، کم خوابې

Hypospermie د سپرمو د شمیر لږوالئ

Hypothyreose د تیروئید د غدې دې دندې لږوالئ

Hypotonie Hypotonus د وينې دې فشار ټيټ والئ
په نورمال حالت کې لږوالئ يا بدلون

Hypotrichose د طبعي حالت په خلاف په
بدن کې د ويښتوو لږوالئ

Hypotrophie د ژوانکو وړکتوب د حجم يا پنهوالی
غټوالي له مخې لکه سوتغذي، د خوړو لږ خوړل

hysteros- (gr. hystèra, hystèr) = syn. Uterus, metrium رحم،
کوم ځای کې چې د ماشوم بنسټ په کې ايښودل کېږي او
هلته په کې د زېږون تر وخته پوري وده او ژوند کوي

Hysterektomie د رحم پريکول او د ښځې له بدن
څخه لرې کول چې په لاندې دوه ډوله دي

a: abdominale د ابدومن له لارې

b: vagenale د واګينا يا مهبل له لارې

Hysteri( gr. Hysterikòs, hyster ) Hysterektomie
هيستيري يا هيستير د رحم لپاره پکارول کېږي او هغه څه
چې رحم پورې اړه لکه هيستيريکتوميي

Hysterie همدارنګه هيستيري يوه رواني ستونځه
هم نومول شوي

Hysterocele هغه هيرنيا چې رحم يي هم محتوي وي

Hysteropexie په اوپراتيفه توګه د رحم
يا يوټيروس ټينګول، تثبيتول د شاوخوا جدارو پورې

Hysteroptose د يوټيروس يا رحم مخ کښته ځوړنديدل
ښکته کيدل

# I

i.-m. = intramusculaer په عضلې کې يا د عضلې
له لارې لکه د درملو ستنې وهلو،د عوامو په ژبه د غوښې
پيچکاري

i.-v. = intravenoes د ناپاکه وینې لرونکي رګونو
یا تور رګ له لارې د مایعاتو او
درملو تیرول یا زرق کول د بدن دننه برخې ته
-ia (gr. /lat.) دا یو د کلمې د پاي ټکئ یا پساوند
تورئ دئ چې د حالت د دندې خرګندوالې ښيي
-iasis د ناروغي د حالت خرګندونکئ یا د ناروغي حالت
Ankylostomiasis د چنګک ډوله چینجي ناروغي
ده چې د پارازیت نیماتود هم نومولئ شوئ چې په وړوکولمو
کې ځاي لري او میزبان يې سپئ ، پیشکه او انسان کې وي
Lithiasis د تیږو د شتون له کبله په یوه اورګان
کې د ناروغئ پیدا کیدل

-iatrie , medicina طبابت، ناروغی پېژاندنه، څېړنه او درملنه
Psychiatrie د رواني ناروغیو څېړنه، روان پېژاندنه
روانشناسي
Pädiatrie د ماشومانو طب، هر هغه ناروغی چې
د ماشومانو پورې اړه لري څېړي
-iater (gr. iatrós) طبیب، درمان کوونکئ
iatrogen هغه څه چې د یوه طبیب په
لاس د درملنې په وخت او یا وروسته له هغه پیښ شوي
یا مینځ ته راغلې وي

-id or -oid (gr. eidés) یو ډوله، متشابه، شباهت درلودل
ورتوالئ لکه د دغه لاندې بېلګې
Karcinoid سرطان ته ورتوالئ یا متشابه
Adenoid غدواتو ته ورتوالئ یا متشابه
Lymphoid لمفوو ته ورتوالئ
idio- (gr. ídios) هر هغه څه چې شخص پورې اړه لري
شخصي، خپل سر

idiopathic هغه ناروغئ چې دې نه پېژاندل
شـویو لاملونو له کبله مینځ ته راغلي

-ie, gr./lat. -ia د یوې کلمې وروستۍ یا د پای برخه
ده چې کلمې ته د بنسټیز یا اصلي شـکل او معنی ورکوي
Hepatopathie د لږمانه او د صفراوي لارې یا قنات
یا ډوکټوس خولیډېکوس ټولې ناروغۍ
ictero-,Icterus (gr. Íkteros ) د بدن د پوستکي دې
رنګ زېړوالئ له روښانه تر تیاره رنګه چې د بیلوروبین او
صفراوي تیزاب د شتون له امله مینځ ته راځي، زیړ رنګ
Icterus cholestatic د خولیستاتیک موادو (صفراوي موادو)
د بندېدلو،دریدلو،دمه کیدلو له کبله مینځ ته راغلئ زېړئ
Icterus haemolytic د وینې د کروياتو د ټوټه کیدلو
تخریب کیدلو یا لیز کیدلو له امله مینځ ته راغلئ زېړئ
Ileitis په لغوي ډول د کږې یا منحني کولمې
یا الیوم التهاب ته ویل شـوي
Ileitis terminalis د الیوم یا د کږې یا منحني
کولمې یا د وړوکولمو د پای یا اخرینۍ برخې یا هغه برخه
چې له کېکوم یا چېکوم سـره نښـلي التهاب یا زخم
ileo- (lat.) یوه لاتینه کلمه ده چې د وړو کولمو هغه برخه
جوړوي چې د کږې کولمې په نامه نومول شـوی ده
ileocaecal هر هغه څه چې الیوم ټیرمینال او
ځیکوم ورسره مخامخ وي
Ileocaecaltuberculose د الیوځیکال د سیمې توبرکلوز
Ileocaecalvolvulus د الیوم او کېکوم یا
څېکوم تر مینځ پردې یا والوونه
Ileocolostomie د الیوم او کولون تر مینځ یوه نوې لاره چې د
جراحي عملیات په مرسته تر سره کېږی

Ileojejunostomie — د اليوم او جيجونوم نوې اړيکې يا اناستوموز د جراحي عمليات په مرسته

Ileum (gr.) — اليوم د نريو کولمو يا وړو کولمو د پاى يا اخريني برخې ته وايى چې په څکوم کې ننوځي

Ileus (gr. ) — د بيلابيلو يا مختلفو لاملونو له کبله د کولمو په بهير کې ستونځې،د کولمو فلج او يا د کولمو بنديدل

ilia, ilium(pl.) — دوه لارې ستنې ،د اوسپنې پټلۍ پوستوالۍ، نرمي

Iliococcygeus

Musculus iliococcygeus

iliofemoralis

Ligamentum iliofemoralis

Iliosakral

impressio — اثر، تاثير، عميق، ټيټيدل

imus, infimus (Superlativ infra) — اموز او انفيموز د انفرا عاليترين حالت دئ چې لاندې، ټيټې، در پائين معنى لري

in-, in — دننه، دننه خوا، په دننه کې

Inspiration — هوا اخستل، داکسيجن تنفس کول

ex- — دباندې، بهر

Expiration — د هوا ويستل بيرته له سږو، يعني د کاربونداى اکسايد لرونکې هوا ويستل

incisivus — هدف ترې پريکوونکي غاښونه دي پريکوونکۍ

Incisura — په جراحي عمليات کې د سکاپيل يا چړې په مرسته د ابدومن يا کومې بلې برخې د پوستکي يا اورګان شق کولو ته وايي، يو شق

inclination (lat.) میلان، تمایل
Inclinatio pelvis د حوصلې یا پیلویز میلان یوې خواته
Incubation time (lat. incubare ) = hncobation period
incurabel (lat. incuratus) نه رغیدنه، نه جوړیدنه هدف
ترې هغه ناروغي ده چې درملنه یي ناشونې وي
curabel رغونه، جوړیدنه یعني هغه ناروغي چې
د درملني وړ وي
Incus (lat.) = Amboss د غوږ د منځنۍ
برخې هډوکي یا غضروف
Index د ښونې ګوته، داشارې ګوته، دشهادت ګوته
Infans (lat.) ماشوم، نه غړیدونکئ
infantil (lat. infans) په لاتینه ژبه انفانس نه غړیدونکي
ته وایي چې هدف ترې هغه وړوکئ ماشوم دئ چې نه شي
غړیدلئ یعني وړوکئ ماشوم
Infantilismus هغه ناروغي ده چې انسان
په طبعي توګه وده نه کوي او لکه
ماشوم پاتې کېږي

infarct (lat. Infarcire ) په دننه کې درېدل،سکوت
د یوه اورګان مړینه یا نکروز، د یوه اورګان د یوې برخې
او جوړښت یا تیشیو د ازښیمي (ازکیمي) چې سیمې ته
د آکسیجن پوره نه رسیدلو له امله را مینځ ته کېږي
او همدارنګه په حاده توګه د ارتیریا د بندېدلو له کبله رامینځ ته
شوئ انفارکت او داسې نورو پېښو ته انفارکت ویل شوي
یا په لنډ عبارت د اورګان جوړښتونو یا تشیو مړینه چې په
دفعتاً توګه د وینې د جریان د دریدلو له کبله مینځ ته راځي

inferior ټیټ، لاندې

infimus (دئ چې ټیټ، لاندې معنی ورکوي superlativ =
سوپراتیف infra, inferior د)
influenza = Virusgrippe ویروس له کبله پیښه
شوې ناروغي یا والګئ
infra لاندې، تر یو شي لاندې، ترې ټیټ
Infrakardial د زړه لاندې
Infraklaviculaer هر هغه شیان چې
د کلاویکولا یا ترقوې لاندې شتون ولري
Infraorbital د اوربیت یا د سترګو د جوف لاندې
Infrasternal د سترنوم د هډوکې لاندې
infusion (lat. infundere) د بدن دننه خوا ته اوبه یا مایعات
ورکول، په ډیره کچه یا اندازه د مایعاتو زرق کول د ورید
له لارې د بدن دوراني سیستم

inguen,inguinis(lat.)=eng. Groin د اینګوینال شاوخوا سیمه
inguino- (lat. inguen) د عوامو په ژبه قدکشک
یا د انګوینال سیمه
inguinal, adjectiv دا صفت کلمه ده چې هرهغه
څه چط اینګوینا پورې اړه لري یا ورسره مخامخ وي ویل کېږي
Inguinalhernie د اینګوینال دسپمې چوره یا اختناق
inhomogen هغه څه چې یو ډول، یو جنس، یوه اندازه
نه وي یا نه وي جوړ شوي
Injection (lat. Inicere ) ستنې وهل ، پیچکاري، زرق کول
Inspiration هوا اخستل،د اکسیجن تنفس کول
Insufficience د بدن د یوه غړي یا اورګان
د دندې کمزوري یا ضعیفي، هغه اورګان چې نشي
کولاي خپله دنده په ښه توګه تر سره کړي
Insula یوه ټاپو، جزیره

Insulae pancreaticae (pl.) = syn. Langerhans Insula
د لنګرهانس ټاپو یا جزیره

Insulin د پانکریاس د لنګرهانس په ټاپو کې د بیټا ژوانکو څخه جوړې شوې یا جوړېدونکې پروتیو هورمون دئ چې (له 6000شپږزرو لوړ ام جي) د وینې د خوړې یا شکرې ټیټوونکئ او د وینې د خوړې کچه په نورمال حالت ساتلو دنده لري

Inter- (lat., inter) یوه لاتینه کلمه ده چې تر مینځ یا د دوو شیانو، دوو اورګانو په مینځ کې معنورکوي

Interatrial د دواړو اتریومو یا د زړه د پورتنۍ برخې د جوفونو تر مینځ

Intercellulaer د ژوانکو تر مینځ

Interdigital د لاس د ګوتو او یا پوښې د ګوتو تر مینځ

Intercostal د پوښتیو تر مینځ

Intercostalarterie د پوښتیو تر مینځ د پاکې وینې پراته رګونه

Intercostalmuscls د پوښتیو تر مینځ پرتې عضلي

Intercostalvenae د پوښتیو تر مینځ پراته د ناپاکې وینې رګونه یا وریدونه

Interior (gr. innerer) له یوناني کلمې څخه اخستلې شوې چې دننه یا داخل نومېږي

Interlobaer د دو ټوټو یا دو پارچو تر مینځه

Intermammaer د دو تیو یا ثدیو تر مینځه

Intermenstruell په ښځینه جنس کې د دو میاشتنۍ خونرېزۍ تر مینځواټن یا فاصله

Internus دننه قرار درلودل

Interossaer د دو هډوکو تر مینځ

Interphalangeal د لاسونو د ګوتو یا د پښو د ګوتو تر مینځه شتوالئ

Interspinal د ملا د مريو يا فقراتو تر مينځ
پرتې پروسيسوزوس سپينوزيا
Interventrikulaer د زړه د لاندنيو خونو يا بطيناتو تر مينځ
Itervertebral د ملا د دو مريو يا فقراتو تر مينځ
Intestinum(lat.) له لاتينې کلمې څخه چې کولمې
نومولې شوې دي او په لاندې ډول دي
Intestinum crassum لوې يا غتې کولمې
Intestinum tenue وړې يا نرۍ کولمې
Intima (lat. Intimus) انټيما له لاتينې کلمې انټيموس
څخه اخستلې شوې ده چې په طبابت کې موخه ترې د
وينې او لمفاوي رګونو د ديوال يا جدار دننه برخې يا طبقې
ته ويل کېږي
Tunica intima, Tunica interna دننه خوا، داخلي
Intoxiction مسموم کيدل، زهرى کېدل

intra- (lat.) په دننه کې،په يوه محدوده کې
Intraabdominal دې ګېډې يا ابدومن په دننه کې
Intraarterial د پاکې وينې د رګونو په دننه کې
Intraarticulaer د بندونو په دننه کې
Intraatrial د زړه د پورتنيو خونو يا کوټو، اذيناتو
په مينځ يا دننه کې
Intracellulaer د ژوانکو په مينځ کې
Intracutan د بدن د پوستکي په مينځ کې
Intragastral د ګستر په مينځ کې
Intrahepatic د لېرمانه په مينځ کې
Intrakardial د زړه په مينځ کې
Intrakranial د کوپړۍ يا جمجمعې په مينځ کې
Intralaryngeal د هوا اخستلو په تولي کې

Ion (gr.)
negative Ion = Anion منفي آيونونه
positive Ion = Kation مثبت آيونونه

irido- (gr. Iris) رنګين کمان، د سترګې عنبيه
iris
Iritis د ايريس التهاب

isch- = Ischio- (gr. íschein ) د يونانی کلمې ځخه
چې مخنيوئ، وروسته پاتېوالئ معنی ورکوي اخستلې شوې
او دلته دکلمې هغه برخ ده چې د خاصرې د لګن بند يا
مفصل،د خاصرې لګن نومولئ شوئ
Ischaemie د وينې د آکسيجن لږوالئ، سيمه يا اورګان
د وينې او د آکسيجن له لږوالي سره مخامخ کيدل
Ischurie (gr.) = Incontinentia urinae د ميتازو يا ادرار
هغه تګلاره، رفتار، سلوک دئ چې په نورمال ډول په مثانه
کې نه تم کېږي بلکه په خپل سر يا غير ارادي روانې وي
iso- (gr. ísos) مساوي، په يوه اندازه لويوالئ، غټوالئ
Isochrom يو رنګوالئ، ټوله سيمه په يوه متجانس رنګ
Isochron په يوه وخت، همزمان
Isokorie (gr. Kòrn) Pupille په يوه اندازه
دې دواړو سترګو د حدقو يا ليمو پراخوالئ
Isomorph (morpho-, Form) په يوه شکل، يوه ډول

isthmus (gr. Isthmòs) تنګه د تېريدلو لاره، نري اړيکه،
تنګه سيمه
Isthmus glandulae thyroideae د جاغور د غدې
د دواړو ټوټو يا دواړو برخو د نښلولو پل،سيمه يا ټوټه

-itis ایټیز د ګلمې هغه وروستۍ برخه ده چې
په طبابت کې تر ډېره حده یوه التهاب ته وایي

Pleuritis د پلورا التهاب

Koxitis د حرقفې د بندونو التهاب

ITN = Intubationsnarkose

## J

jejuno- (lat. Ieinus) له لاتیني کلمې څخه اخستلې شوې
تشه ، خالي ده او دلته موخه ترې د کولمو پورتنۍ
برخه کومه چې د ډیوډینوم له پای څخه پیل کېږي

Jejunalatresie (congenital) د زېږون له وخته د کولمو
د جیجونیوم چې وروسته له ډیوډینوم څخه پیل کېږي د چې
د تشو یا خالي کولمو په نامه یادېږي دغه سیمه یایې حلقې
بندې یا تړلې شوي وي

Jejunojejunostomie د جراحي عملیات په مرسته
د دو تشو کولمو تر مینځ نوي اړیکې جوړول

Jejunum تشې یا خالي کولمې، د نریوکولمو
لومړنۍ یا پورتنۍ هغه برخه ده چې له ډیوډینوم سره نښتې

Junctura (lat.) اړیکې پیداکول، د دوو اورګانو ترمینځه
اړیکې پیدا کول

## K

Kanal (gr. kánna) نل، نلکې

Kancero- (gr. Karkìnos) چنګاښ، سرطان

Kancerogen = Karcinogen هغه لاملونه چې
د کارسینوم یا سرطان په مینځ ته راوړلو کې اهم رول لري

Karbunkel(lat. carbunculus) کاربونکیل د ډېرو وېښتو
د فولیکل یا پیاز تر څنګ یه ډېر ټیټ یا عمیق او په واقعیت
کې ډېر دردلرونکئ انفیکسیون یا د ډېرو ګاونډیو یا پنڅو شویو
فرونکولوز له یو کاربونکیل مینځ ته راځي نومول شوئ دئ
Karcio- (gr. karkínos) هدف تري د سرطان ناروغي
ده، چنګاښ، سرطان
Karciniod د سرطاني ناروغي ته ورته
نښې، چنګاښ ته ورتوالئ
Karcinoidos د نایرواندوکرین تومور،د سرطاني
ناروغئ ته ورته حالت یوه ناروغ سره
Karcinom(Ca.) کارسینوم یوه بده یا خبیثه
سرطاني ناروغي ده

Kardio-, Cardio-, Kardia زړه، قلب
Kardiochirurgie د زړه جراحي
Kardiologie هغه علم دئ چې د زړه د جوړښت او
هغه د ناروغیی څېړي یا ورڅخه بحث کوي
Kardiomegalie د زړه لویوالئ یا د حجم له مخې
غټوالئ، غټ زړه
Kardiomyopathie د زړه د عضلې ناروغی
Kardiopathie دا هغه پوهه ده چې د زړه ناروغیو څېړي
Kardioptose د زړه ټیټوالئ یا ټیټ قرار درلودل
له اناتومیک یا نورمال حالت څخه، د زړه ډیر ټیټ موقعیت
Kardiopulmonal هر هغه څه چې زړه او سږو پورې
اړه ولري یا قلب او شش
Kardiospasmus د معدې د لومړني برخې یا هغه
خوله یي چې له اوزوفګوز یا مري سره اړیکې لري تشنج
یا کرمپ ته وایي

Kardiotoxic د زړه هغه ناروغي چې د هغه
الکتروفیزیکي دنده ښه نه تر سره کېږي یعنې د زړه عضله
په سمه توګه پمپ نشي کولای، د زړه ژوبلېدنه یا ځورېدنه
Karditis د زړه د جوړښتونو التهاب چې
د اندوکاردیتیز، میوکاردیتیز، پېریکاردیتیز او پانکاردیتیز
ډولونو باندې لیدل کېږي
Karotisstenose د ورمیږه د ارتیریا یا کاروتس تنګیدل
چې تر ډیره حده یې لامل منګ یا سکلروز وي
karpo- د لاس بنسټیز هډوکي، اصطلاحي معنی یې
د لاس رېښې
karyo- هسته، د ژوانکې منځنی برخه یا هسته
Karyogramm د کروموزوم د حالت ځرنګوالئ لکه غټوالئ
شکل یا فورم او همدارنګه شمیر یې

Kasuistik (lat. casus) پېښه ، موضوع، کیس
Kata- (gr. Katà) ښکته، مخ ښکته، مخ په ځوړ ي
Katarakt د سترګې یا سترګو په عدسیه کې
د هیرو ډوله ستورو مینځ ته راتګ او د هغې پوښل
Katarrh(gr. ) مخ ښکته خوا بهیدل چې په اصل کې
د یوه التهاب له امله لکه له پزې څخه په والګي یا ریزش
او ذکام کې پیدا کېږي
Kaudal اندنی ، ټیټه برخه، د پښو خواته، لکۍ خواته چې
د کرنیال یا پورتني،سر خوا، په مقابل جهت کې شتون ولري
Kranial د سر خواته، پورتنۍ برخه

kephalo-, cephalo- (gr. kephalé) کوپړۍ، سر، تندئ
Kephalalgie, Kephalodynie = Cephalalgie, Cephalodynie
د سر درد، سردردي

ephalhaematom — د زېږون په وخت کې کېدای
شي چې د نوي زېږول شوی ماشوم په سر کې ټینګه
شوي وینه یا غوټه شوي وینه یا لخته شوې وینه یاکواګول
مینځ ته راشي

Kephalometrie — د سر یا کوپړي اندازه کول

Keratektasie

kerato-(gr.)

Keratitis — د سترګې د قرنې التهاب ته وايي

Keratocojunctivitis

Keratomalasie — د قرنې پوستوالئ، نرموالئ

Keratoplastie — د سترګې د قرنې بیا رغونه
د جراحي عملیات په مرسته

Keratose

Keratotomie — د سترګې د قرنې پرانستل یا بېلول

Kines, Kinet — خوځښتونه، ګرځیدل، حرکتونه

kin-; -kinesie (gr. Kineìn) — د یونانی کلمې هغه برخه ده
چې خوځښتونه، حرکتونه نومول شوي

Akinesie, Akinese — نه خوځښت،د خوځښتونو نشتوالئ

Bradykinesie — په حرکتونو کې لړوالئ
د خوځښتونو لړوالئ

Eukinesie — نورمال خوځښتونه، حرکتونه

Hyperkinese — له حده زیات خوځښتونه،هغه
حرکتونه چې نه کنترول کېږي

Hypokinese — په حرکتونو یا خوځښتونو کې لږوالئ
غربت، بیچارګي

Kinetose — د سفر ناروغي،د خوځښتونو یا حرکتونو ناروغي
ته وايي

kinosio- (gr.) د یوناني کلمې هغه مخکنۍ برخه ده
چې خوځښت، حرکت نومول شوئ دئ
Kinesiotherapie د خوځښتونو یا حرکتونو
د ناخوالو یا ستونځو درملنه
Kinesis خوځښتونه، حرکتونه

klasto- (gr. klán) تخریب کول، ورانول، ټوټه کول
klastro- تړل کیدل، بندول
Klastrophilie (lat. Claustrum) له یوې لاتینې کلمې
څخه اخستلې شوې ده چې تړل، قفس ته وایي خو
کلاستروفیلي په اصل کې هغه یوه ناروغي بلله شوې ده
چې ناروغ ځان په کور کې بندي کړئ وي او له کور څخه
نه وځي په دې دلیل چې هغه تعقیب کېږي او یا اګورافوبي
Klaustrophobie هغه ناروغي ده چې له یوې
راټولې شوې کوټې یا سیمې څخه ډار یا ویره لري په تېره له
هغې سیمې څخه چې وتل ناشونې وي (لکه لېږدونکې لاره
یا لفت) همدارنګه د ډېرو انسانانو شتون لکه سینما
سوپرمارکیټونه

clavicula (lat.) ترقوه، د ترقوې هډوکئ، د توقک هډوکئ
Klaviculafractur د ترقوې ماتېدل
kleido- (gr. = lat. clavicula) یوه یوناني کلمه ده چې په
لاتینه کې کلاویکولا نومولې شوې ده،د ترقوې هډوکئ

Kleptomanie (gr. Klèptein) د اېښودلو روږدي، هغه ناروغي
ده چې غیر ضروري شیانو ایښودلو کې ډېروالې یا افراط کوي

Klimakterium (gr. klimaktér) په ښځینه جنس کې
د کلنو د بدلېدلو وخت،په بله اصطلاح هغه کلونو ته ویل کېږي
چې له یوه پړاو څخه بل پړاو ته اوښتل نومېږي او هغه دا چې
د یوې غیر منظمې خونرېزۍ پیل په دې کلنو کې وي چې
ورته د پاست مینوپوز یا د میاشتنۍ خونرېزۍ تر مکملې پاي
ته رسیدلو نیټه هم ویل کېږي

Klinik (gr. klíne) = له یونانی کلمې کلین څخه
چې بستر معنی لري اخستلې شوې
ده چې موخه ترې روغتون دئ، خو په اصل کې د طب
د پوهنتون روغتون چې د پوهنتون په احاطه یا تر څنګه
شتون ولري او محصلین هلته خپلې عملي زده کړې کوي

Klonus (gr. Klònos) = rrythmic Contraction له یونانی
کلمې کلونوز څخه چې قوي او شدید خوځښتونه معنی
لري اخستلې شوېده، د عضلاتو نزدې کیدل د هغوی
د سستۍ په ځواب کې،بې خبره او په شدت سره ویشتل
کلک او تند ټکان، په بېړه سره تکراري خوځښتونه، تقلص
Blepharoklonus د سترکو د پلکو شدید
یا سریع تقلصات

kneme- (gr. = lat. Tibia) کنیم یا کنیمه یونانی کلمه ده
چې په لاتینه ټیبیا نومول شوي چې د لینګي د لاندنۍ
برخې یعني له زنګانه لاندې سیمې غټ هډوکئ دئ

Kohabitation (lat. Cohabitare) = syn. Koitus یوځایوالئ
یوځای اوسېدل، په یوه کور کې اوسېدل
Koitus (lat. coire) د جنسي مناسباتو لپاره د دوه
مخالفو جنسونو(نارینه او ښځینه) یوځاي کیدل یا نزدې کیدل

Kokko- (gr. Kòkkkos) له یونانی کلمې کوکوز څخه
چې هسته، تخم، مغز معنی ورکوي اخستلاې شوې هدف
ترې ګرده یا کلوله ډوله یا د غونډاري په شان باکتري

Kolik (gr. Koliké , kolikòs) د کولمو څوریدل، ژوبلېدل
کولیک په طبابت کې سخت، شدید تشنجي کرمپ لرونکي
دردونو ته ویل کېږي، چې دا یوازې په کولمو پورې اړه نلري
بلکه د بدن په نورو غړو کې هم شونې وي

Koliknephral د بډودو قلنج، د بډوډو د شخئ
په شان یا کرمپ ډوله نه تحمل کوونکي دردونه

kolpo- (gr. Kólpos = lat. Vagina) په ښځوو کې
د جنسي یوځایوالي غړئ یا اورګان

Kolpitis = Vaginitis د کولپو یا واګینا التهاب

Kolpoplastic د واګینا بیا رغونه د جراحي عملیات
په مرسته

Kolporrhaphie = د کولپو یا واګینا، واجینا vagina ګنډل، ترمیم
ګنډل

-rhaphie (gr. Rhaphé) ترمیم ،ګنډل، دوخت، دوختن

Kolporrhexi وګینا (Vagina) کې درز یا خیریدل

-rhexie (gr. Rhéxis = -rhagie) شق، خیریدل، درز

Kolposcopie د کولوسکوپ په مرسته د کولپو
یا وګینا، وجینا لیدنه

Kolpotomie د کولپو یا وګینا ددیوال کې
یا ددیوال له لارې درز یا شق کول

Koma – Komata (gr. Kóma) تېټ یا عمیق خوب

Komedo د وازدې يا غوړو دانه، د وېښتو هغه پراخه شوئ فوليکول چې له کېراتين او له وازدې يا حيواني غوړ څخه ډک شوئ وي

Komplikation (lat. Complicare، complicatus) يوه لاتينه کلمه ده چې د اخته کېدلو يا ګرفتار کېدلو، مصاب کېدلو معنی ورکوي او په طبابت کې د يوې ناروغۍ حالت څرګندوي چې يا د طبيب او يا په طبيعی توګه (لکه د زېږون له وخته) له ناخوالو يا ستونځو سره مخامخ کېدلو ته وايي، د ناروغۍ اختلاطات

Konglomeration(lat. Conglomerare) =Agglomeration يوه لاتينه کلمه ده چې معنی يي کلوله کول، يوځای کول او ټينګول دي

Konjunktivo- (conjunctivo-) = lat. Conjungere يو ځای سره نښلول، اړيکې ورکول

Konjunktivitis

Konkrement (lat. Concrementum) له لاتينې کلمې څخه اخستلې شوې چې يوځايوالئ ، آميزش، امتزاج ، تراکم نومېږي، خو په طبابت کې هدف ترې منګ او تيګې ده لکه د مثانې تيګې، د بډوډو تيګې، د کوټ يا غايطه موادو تيګې او داسې نورې

Konservativ (lat. Conservare) لاسته راوړنه، ساتنه محافظه کاري

Konservative Therapi ساتونکې يا محافظه کاره درملنه يا د درملو په مرسته درملنه چې د اوپيراتيفي يا جراحي عمليات برخلاف

Operative Therapie هغه درملنه چې د جراحي عمليات
په مرسته ترسره کېږي يا ناروغ روغ کېږي
Konserviere (lat. Servare) د ساتنې وړ جوړونه يا رغونه
ساتنه
Konstitutiontyp په اصل کې د انسان د بدن
د جوړښتونو ښودنه کوي خو په طب کې موخه ترې د يوه
انسان د بدن جوړښت او د هغه د دندو د تر سره کولو توانايي
او رواني حالتونو اړيکې ښودنې ته وايي

Kontrahere (lat. Contrahere, Contractus) په خپل مينځ
کې سره نښتل، يوځای کېدل، نږدې کيدل، تقلص
Kontraktil د تقلصاتو استعداد درلودل، هغه توانايي
يا قدرت چې ځان ټول کړي لکه د عضلې تقلص
Kontraktion (lat. Contrahere) کانترکشن له لاتينې
کلمې کانتراهير څخه چې خپل مينځ کې سره نږدې کيدلو
معنی ورکوي په تيره بيا د يوه خالي يا جوف لرونکي اورګان د
يوې عضلې او يا د عضلې د ديوال تقلص ته ويل شوي
Kontratur په پرلپسې توګه يا دوامداره توګه د يوه اورګان
د پستو يا نرمو برخو لنډونکئ يا سره نږدې کوونکئ

Konversion (lat. Conversio ) تاويدل، بدلون، په بل ډول
يا بل حالت ته بدلېدل

Kopremesis = Miserere( Ileus) لکه په اليوس يا د کولمو
دبنديدلو له کبله د غايطه موادو کانګې، استفراغات څکه چې
د غايطه موادو د وتلو لاره د کولمو او مقعد له لارې ناشونې وي

kopro- (gr. Kòpros، Kot = lat. Stercus; faeces) يوه يونانی
کلمه ده چې بد، خراب، غايطه مواد نومول شوې لکه

Koprostase د غایطه موادو بندېدل په کولون کې

kore- (gr. Die Pupille = lat. Pupilla) د سترګو لېمې
یا مردمک چشم
Korektopie (gr. Kòrektopos) = Ektopia pupillae له
خپل اصلي ځای څخه د سترګې د لېمې بیځایه کېدلو ته
وایي چې تر ډېره حده دننه خوا او پورته خوا ته وي

korneo-(lat. Cornea cutis) د سترګې قرنیه
Kornealulcus = Ulcus cornae د قرنې ټپ، پرهار
Koronar = Angio د زړه د وینې رګونه چې د زړه د تاج
په نامه هم نومول شوي

koronar- = angio- Koronararterae په طبابت کې دې زړه د
وینې هغه رګونو ته وایي چې د زړه عضلې ته وینه ورسوي
چې ورته د زړه د تاج رګونه یا د زړه تاج ډوله رګونه وایي

Koronarangiographie د کورونار یا د زړه د تاج ډوله
رګونو ښودنه د رادیوګرافئ د وړانګو او کانترس موادو په
مرسته او د هغه کوم بدلون چې شتون ولري څېړل کېږي
Koronararterie، Coronararterae د زړه د وینې تاج ډوله
یا تاج ته ورته رګونه ، د وینې هغه رګونه چې
د زړه عضلې ته وینه رسوي یایې تغذیه، اروا کوي
Koronarchirurgie د کورونار د رګونو جراحي
Koronarinsufficience کورونار په پوره توګه خپله دنده
سرته نشي رسولي، د کورونار د دندې کمزوري یا ضعیفوالئ
Koronarsklerose = Arteriosklerose د کورونار د رګونو تنګېدل
یا بندېدل چې د منګ ته ورته لرونګو موادو په واسطه
د چې د هغه په جدار پورې نښتي وي

Koronarspasmus د کرونار د رګونو کرمپ یا تشنج
Koronarstenose د زړه د وینې د رګونو یا د زړه
د تاج یا کرونار تنګوالئ

Korpus (lat. Corpus) یوه لاتینه کلمه ده چې تنه، بدن
نومول شوئ دئ
Koxalgie د خاصرې د لګن یا د حوصلې دردونه
په ارتریتیز او د حوصلې په ارتروز کې
Koxarthrose (degenerative) په تخریبي
یا دیجینیراتیف ډول د حوصلې د بندونو یا مفصلونو ناروغۍ
Koxitis د حوصلې د بندونو التهاب یا ارتریتیز
kranial پورته، پورتنۍ(د سر یا تندي خوا)ته
kaudal لاندې، ټیټ، ښکته (پښو یا لکۍ ) خوا

-krin =Krino- (gr. Krínein) لرې اچول، ترشح کول، افرازول
بهر کول، بیلول(د ناروغ بیل او یواځې ساتل)ته هم ویل کېږي
Endokrin دننه خوا، دننه دې وینې په بهیر
کې افرازات او همدارنګه، ترشحات
endo- (gr. Éndon) دننه، په دننه کې، په یوه چاپیریال
کې، په حدودو کې

Kryo- (gr. Krýos) ساړه،کنګل، یخ
Kryalgesie د سړو وهلي درد یعنې دې ټیټې
درجې د مخامخ کیلو له کبله ور پیښ شوي دردونه
aesthes حساسیت، احساس
Kryaesthesie له حده زیات حساسیت د سړو
په مقابل کې
Kryoanaesthesie د سړو له کبله بې حسي
د سړو له کبله احساس یا حسیت له لاسه ورکول

Kryopathie هغه ناروغي يا حالت څرګندوي
چې وروسته د سړو وهلو له کبله مینځ ته راځي
Kryotherapie د کنګل يا د يخ د ټوټو په مرسته
سيميزه يا لوکال درملنه تر څو چې د التهاب د خپريدلو
او هيماتوم د جوړيدلو څخه مخنيوئ وشي

Krypto- (gr. Kryptós) پټ، پوښلئ، پناه، مستور
Kryptogen ناپيژاندل شوي،پوښل شوي
پټ لاملونه، هغه ناروغی يا پيښې چې له نه پېژاندل شويو
لاملونو څخه مينځ ته راغلې وي
Kryptomenorrhoe هغه مينستريشن ته ويل
کېږي چې دې ښځينه جنسي اورګان دې غير طبيعی حالت
يا نشتوالي له کبله وينه بهيدنه بهر ته يا دباندې صورت نه
نيسي يا شونې نه وي تر ډېره بيا دسيرويکس په اترېزي کې
Meno- (gr. Mèn, menòs) مينو له يونانی کلمې مين
يا مينوز څخه اخستلې شوې چې مياشت معنی ورکوي
Kryptochismus = Maldescensus testis د خوټو
يا خصيو د ښکته کېدلو ستونځې

Kryptopexie = Orchidopexie د يوه جراحي عمليات
په مرسته د اورشيتو ټينګول يا تثبيت کول د هغه په کڅوړه
کې يا په کڅوړه پورې
Kryptospermie د سپرمو د ژوانکو په شمېر کې
ډېر زيات لږوالئ

Kultur (lat. Cultura) ; Bakteriakultur کښت، کرنه
لکه د باکتريا کرنه، کښت
Kur (lat. Cura) پالنه، مراقبت، د طبي استراحت
دوره، پرستاري

Kurabel (lat. Curare) د درملنې وړ، د رملنه يې شونې ده
inkurabel هغه ناروغي چې درملنه يې شونې نه وي
Kurativ (lat. Curare) کوراتيف
هغه لاتينه کلمه ده چې د ناروغۍ بيا روغېدنه، شفا موندنه
ځخه هدف دئ يعنې له هغې درملنې ځخه موخه ده
چې ناروغ په ښه او پرمختللې درملنې روغ شي
Kurative Therapie د ناروغۍ د بيا روغيدنې يا شفا
موندلو درملنه

Kutaneo- (lat. Cutis) پوستکئ، د بدن پوستکئ،جلد

Kyphose (gr. Kyphòs) يوه يونانی کلمه ده چې مخې
خواته کږېدلو، انحنا ته وايي، او په نورماله توګه د ملا د مريو يا
د ملا د تير، د فقراتو ستون کږېدل يا انحنا شاخواته
Kyphosis thoracica د تورکس يا د سينې د قفس
د مريو انحنا يا کږېدل

**L**

labium شونډې، د شونډو په ډول ځنډه يا ځنډې
Labor (lat. Labor، Laboratorium) لابور کار، زحمت
ځېړنې ته وايي همدارنګه د لابراتوار نوم يا لابراتوار لنډيز دئ
Laboratorium د ځېړنې او آزمايشونو د کار ځای
labrum (lat.) شونډې، شونډو ته ورته جوړښت
Labyrinth (gr. labyrintos) د غوږ دننه برخه
Labyrinthektomi د غوږ دننه برخې لري کول
Labyrinthitis د غوږ دننه برخې التهاب
Labyrinthotomi د غوږ دننه برخې پرانستل او ليدل

lac, lacti = Lakto- او galakto- (gr. gála, gálaktos =lat. Lac, lactis) شیدې، پی
lacrima (lat.= gr. Dakryo- ) اوښکې
lactifer د شیدو بهوونکئ، رهبري کوونکئ
Ductuc lactifer د شیدو د لېږدونې نلکې
یا کانالونه چې تر ماماریا پورې یي رسوي
Laktaion وروسته له زېږون څخه د شیدو جوړېدنه
د شیدو افراز کیدل
Laktotrop د شیدو د جوړېدلو، افراز کېدلو پاره ونکی

Laktovegetarer له سبوو او د شیدو نه جوړ شویو
شیانو نه خوړل یا ترې ډهډه کول چې ورته ویجیتار یا ویګیتار
هم ویل کېږي

lamina(lat.), Pl. Laminae پاڼه، نری یا نازکه پارچه
د بدن د یوه غړي یوه نری یا نازکه پاڼه یا طبقه
Lamina quadrigemina = Tectum mesencephalie خلور غونډئ
یا تپه لرونکې پاڼې، ټوټې، پارچې

laparo- gr. Lapára = lat. Venter, abdomen) ګېډه، د ګېډې
جوف، تشه، د د ګېډې خنګونه، بطن
Laparoskop یوه طبي اله ده چې د هغه په مرسته
د طب ډاکتر د ګېډې دننه برخې لیدلای شي یا یې ویني
Laparoskopie د جراحي عملیات په توخت کې
د ګېډې په دننه کې پراته اورګانونو او شته شیانو لیدنه
د لاپاراسکوپ په مرسته
Laparotomie یا جراحي عملیات په مرسته د ګېډې
په Operative د جوف پرانستل، سپړل

laryngo- (gr. Lárynx,Laryngos = lat. Laryngeus)
حنجره، ستونئ، حلق
Laryngitis د ستوني، حنجرې التهاب
Laryngopharyngitis د حنجرې او ستوني التهاب
ته ويل کېږي
Larynoplegie د حنجرې فلج
Laryngockopie د يوې طبي آلې يا لارينګوسکوپ
په مرسته د حنجرې ليدنه او د هغې دننه څرنګوالی
Laryngospasmus د حنجرې کرمپ يا شخوالئ
Laryngotracheitis د حنجرې او تراخيا
يا د هوايي لارې التهاب
Larynxkarcinom د حنجرې سرطاني ناروغي

Latent (lat. latens)= asymptomatic پټ، مخفي، سيمپتوم
يا اعراض نه ښودونکئ
manifestus د ناروغی نښې په روښانه توګه څرګندېدل
latero- (lat. Latus, lateris) څنګ، يوې خوا، يو طرف
lateral (lat. lateralis) په څنګ، په يوه څنګ کې
يوې خواکې د يوې پېښې يا ناروغی پېښېدل چې
د مينځني برخې څخه لرې يا په مقابل کې پرته سيمه
medial دننه خوا يا د بدن محور يا مرکزی سيمې
ته نږدې شتوالئ
lateralis د بدن په يوې خوا قرار درلودل، له مرکز
څخه بهر خواته، په يوه څنګ کې شتوالئ
latior (Komparativ ) پراخه، وسيع
latissimus (lat.) ډېره پراخه د بيلګې په توګه
د موسکولوس لاتيسيموز دوري
-issimus, -issima, -issimum (superlativ )

Latus (lat.) خنګ، د یوه خنګ نیمه برخه
latus (lat.) پراخه، وسیع
tensor fasciae lata
ternsor ځورور، کلک، قوي، ځور ښودونکئ
ځور ازمویونکئ
Legasthenie (lat.) د لیګاستیني کلمه په
ځینو کتابونو کې لاتینه کلمه بللې خو په انترنت کې بیا زړه
یوناني کلمه نوموله شوې چې د لوستلو او لیکلو ستونځې
یعني چې سړئ په لوستلو او سمو ګرامري لیکلو کې
ستونځې
lemniscus, عصبي پټلي یا لارې
lens, lentis (lat.) د سترګې عدسیه
lentiformis عدسې ته ورته شکل، فورم

lepto- ډنګر، له نورمال حالت څخه ډېر ضعیف
leptosom / Astheniker ډنګرو، لوړ له نرۍ غاړې یا ورمېږ سره
یو انسان لکه بولمي او ډېر نرئ اندام لرونکي ناروغان

letal (lat. Letalis) وژونکئ، مرګونئ
Letaldosis (LD) مرګونئ، وژونکئ د زهرو اندازه یا شمیر
Letalitaet د مړینې د پېښو شمېر د یوې ځانګړې
ناروغۍ له کبله، هغه اړیکې چې د مړینې پېښې چې
د یوې ځانګړې ناروغۍ له کبله پېښې شوې وي د یوې نوې
ځانګړې ناروغۍ له شمیر سره (دا یواځې په اکوټو یا حادو
ناروغیو کې د شمیر وړ وي) کېږي
Mortalitaet د مړینې شمیر، د مړینې هغه شمیر چې
د یوې ځانګړې ناروغۍ له کبله د مړینې نسبت په یوه
معین وخت کې د هغه سیمې د اوسیدونکو انسانانو د
شمیر په اندازه ښي

Leuko- (gr. Leukós) سپین، روښانه، ځلېدونکي
هدف دلته ترې د وینې سپینې ژوانکې، کرویات سفید خون
Leukaemie لغوی معنی یې سپینه وینه او
د عوامو په ژبه هم ورته د وینې سرطان ورته ویل کېږي
په لایکومي کې وینه په اصل کې سپینه نه وي. هغه پیښه
یا سیستم چې په دغه ناروغي کې مینځ ته راځي هغه
دا وي چې په وینه کې له حده ډېري د سپینو ژوانکو ډیروالئ
یا شتوالئ
Leukocyt د وینې سپین رنګه اجسام، یوه
سپینه ژوانکه
Leukocytopenie = Leukopenie د وینې
د سپینو ژوانکو د شمیر لږوالئ
-penie (gr. Penía) لږوالئ، غربت، کمزوري
Leukocytopoese د سپینو ژوانکو جوړښت ته ویل
کېږي. سپینې ژوانکې د هډوکو په مغز او په لمفاوي
غوټو ، غدو کې جوړېږي یا تولید کېږي
Leukucytose د لایکوسیتو یا سپینو ژوانکو ډیروالئ
په وینه کې
Leukocytourie په ادرار کې د سپینو ژوانکو
یا د وینې سپینو ټوټو یا اجسامو شتوالئ

Levator (lat. Levare) لیواتور له لاتینې کلمې لیوار څخه
چې پورته کولو، لوړولو، پورته بیولو ته وایي اخستلې شوې
لکه د لېواتور اني عضله
M. levator palpebrae
M. levator scapulae
levis (lat.) ساده، اسانه،تر فشار لاندې نشتوالئ، صاف
او بې وېښتو

liber (lat.) خپلواک، ازاده، مستقل

lichen (gr. leichèn) یوه یونانی کلمه ده چې کوځۍ
یا وړې اوبدل شوي ویښته معنی لر خو په طب کې موخه
ترې د پوستکي وړوکي پاپولوسیز اکزانتیم ده

lien (lat.) = Synonym, Splen تورئ، طحال

lienorenalis هر هغه څه چې د توري او بډوډي
تر مینځ شتون ولري

Ligamentum lienorenale هغه مزئ یا پړئ چې
لین یا تورئ له بډوډي سره نښلوي

Lig. = Ligamentum لیګ د لیګامینتوم لنډیز دئ او پړو، مزو
یا اوتارو ته وایي

ligamento- (lat. Ligament, Ligamentum) وندنئ ،د پړئ
په شان ټینګ او کلک مزئ دی چې د بدن په دننه کې
غړي سره نښلوي تر څو چې غړي ټینګ وساتي او یو له
بل څخه بیل نشي

Ligamentum costoxiphoideum هغه لیګامینتوم
یا مزئ ته وایي چې پوښتي له هغه هډوکي سره
نښلوي چې د سینې یا تورکس د مخکني برخې په
مینځني سیمه کې پروت دئ

ligamentum dorsale هغه مزي، یا لیګامینتوم چې
د شا خواته شتون لري

Ligamenta لیګامینتا د جمعې کلمې لپاره چې
مزي، پړي نومېږي

Ligamentruptur د لیګمینت چاودیدل ، شلېدل
تر مینځه دوه ځایه بیلیدل

Ruptur (lat. Rumpere) چاودیدل، شلېدل، خیرې کېدل
تر مینځه دوه ځایه کیدل

Ligatura (lat. Ligare ) لیګاتورا له لاتیني کلمې لیګار
څخه چې نښلول،غوټه کول، ټینګول، بستن، ګره زدن
معنی ورکوي خو په جراحي کې د وینې دې رګونو د لاندې
برخې یا بیخ غوټه کولو، نښلولو، ټینګولو ته وایي لکه د وینې
د رګونو او لمفاوي سیستم ټینګولو، کلکولو ته وایي تر څو
چې له خونرېزۍ څخه ډهډه وشي
Ligatura arteriae د وینې د رګونو ټینګول یا غوټه کول
د جراحي تارو په مرسته
Ligg. = Ligamenta لیګ د لیګامینتا لنډېز دئ

Limbus (lat.) درز، سورکی، څنډه، حاشیه
Limen (lat.) څنډه، د یوه اورګان پوله، سرحد
Limen nasie د پزې د جوف تر مینځ دیوال یا پوله
Linea (lat.)، Pl. Lineae لینیا یوه لاتینه کلمه ده چې
لیکه، خط معنی ورکوي لکه لینیا البا یا سپینه لیکه
Lingua لینګوا ژبې، زبان ته وایی
lingualis هر هغه څه چې ژبې پورې اړه لري
یا ژبه ورسره مخامخ وي یا په تماس کې وي
Folliculi linguales د ځینو ناروغیو یا تندې له کبله
د ژبې په سر هغه پرده یا بار چې ورته وایي نومول شوئ دئ
Lingula (lat.) ژبکی، وړوکې ژبه
Lingula pulmonis sinistri د کینې خوا د سږي
یا شش د پورتنۍ ټوټې لاندنۍ او اخرینۍ برخې ته وایي

Lipase د غوړو یا شحم ټوټه کوونکي انزایم ته وایي
چې په پانکریاس کې جوړېږي او په نورمال یا طبعی ډول
په پانکریاس کې ویده یا غیر فعال وي او هغه وخت په کار

یا فعالیت پیل کوی کله چې ډوډینیوم یا کولمو ته ننوځي او په پتالویک ډول بیا په خپله پانکریاس کې فعال کیږی او غوړ یا لیپید خوری او له اوهیولیز پروسېه پر مخ ځي تر څو چې د پانکریاس پرانشیم له هم له مینځه لاړ شی

-ase ایز- د کلمې هغه وروستي برخه ده چې انزایم توټه کوونکو موادو ته ویل شوي

Lipatrophie د غوړینو موادو لږکیدل چې

د خوړو یا تغذې ستونځو له کبله هم مینځ ته راځي، د بدن د پوستکي لاندې د غوړ یا شحم طبقې نرۍ کېږي

lipo- (gr. Lípos = lat. Adeps, adipis) غوړ، شحم

Lipophilie د غوړو نشتوالي حالت، د غوړیو حل کوونکي مواد

Lipoblast د غوړو ځوانې ژوانکې

Lipocyt د غوړیو ژوانکې

Lipodystrophie د غوړو لږوالی دې تغذي ستونځو له کبله، د غوړو ورکېدل

Lipogenese د غوړو یا شحم مینځ ته راتګ بروز، پیدایښت

Lipoid هغه مواد چې غوړیو ته ورتوالئ لري

Lipom د لیپو سیت د جوړښت پاړسوب، تومور تر ډیره لیپوم سلیم او بې زیانه، بې ضرره وي

Lipomatose هغه ناروغي ده چې په هغه کې یو شمېر د غوړینو جوړښتونو پاړسوب یا تومورونه پیدا کېږي

Lipophil د غوړ منحل کونکئ(غوړ خوښوونکي)ته وایي

Liposarkom د غوړینو جوړښتونو یوه نادره او مالیګنان، خبیثه بده دانه ده چې معمولاً په ښه توګه د پېژاندنې وړ وي

Liquefaktion اوبه کیدل یا مایع کیدل

Liquid (lat. Liquidus) له لاتينې کلمې ايکيدوس
څخه چې مايع، مايعات معنی ورکوي اخستلې شوي ده
Liquidation حسابول د حساب يا صورت حساب کول
تصفيه کول، د مايعاتو فلتر کول
liquor اوبه، مايعات، مايع
Liquordiagnostik = Liquor cerebrospinalis د سر
د مغز يا د شوکي نخا د اوبو يا مايع پلټنه، معاينات
-lith د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې تيګه، کاڼي
دې تيګو له کبله مينځ ته راغلې ناروغۍ
Lithiasis له تيګو جوړې شويو ناروغۍ
د تيګو جوړېدنه په بډوډوکې، د تريخي په کڅوړه
يا ضفراوي کڅوړه کې، په مثانه کې او نورو غړو کې
-iasis ايازيس د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې
د يوې داسي ناروغۍ حالت څرګندوي، کومه چې
د تيګو(کونکريمينټ)د شتوالي له کبله په يوه اورګان يا نورو
غړو کې مينځ ته راځي
Phlebolith د وريدو تيګي يا منګ، په تور رګ
يا وريد کې تيګو ته ورته کلک منګ شتوالئ
Nephrolithiasis په بډوډو کې د تيګو يا کاڼو شتون
litho- (gr. Líthos) تيګه، تيګې، کاڼي
lithogen هغه څه يا لاملونه چې د تيګو د جوړېدنې
زمينو ته وده يا پر مختګ ورکوي يا مساعد کوي
Litholyse د تيګو له مينځه وړل، منحل کول
چې ښېموليتوليز هم ورته وايي چې دا پروسه د طبي درملو
په مرسته سرته رسېږي لکه يوروليتوليز، خوليليتوليز
Lithotripsie د تيګو ټوټه کول، ميده کول په يوه خالي
يا مجوف اورګان کې

-tripsie (gr. Tríbein) د کلمې هغه برخه ده چې
له یوناني کلمې ټریبین څخه چې سولول، تراشل یا سائیدن
میده کولو ته وایي

lobo- (gr. Lobòs) ټوټه، پارچه، برخه، دستمال
Lobaer د هر هغه څه سره چې د یوه اورګان یوه ټوټه
یا پارچه مخامخ وي
Lobaerpneumonie د سږو د یوې ټوټې
یا پارچې التهاب ته وایي
Lobektomie د سږو یا سږي د یوې ټوټې پریکول
یا لرې کول
lobulus وړوکي ټوټې یا پارچې لکه د غدواتو
او پرانشیماتوزي اورګانو لکه دې ینې یا لړمانه او یا د بډوډو
وړې پارچې
Lobulus auriculae د غوږ پسته یا بې غضروفه برخه
یا ژبکئ، نرمي ګوش
Lobus (lat. Lobus ) : ټوټه، پارچه
Lobus frontalis د کوپړۍ د تندي یا وچولي
د هډوکي ټوټه یا برخه
Lobus glandulae thyroideae د تیروئید
یا جاغور د غدې یوه ټوټه یا برخه
Lobus inferior د سږو لاندنۍ ټوټه یا برخه
Lobus medius pulmonis dextra د ښۍ خوا
د سږي مینځنۍ ټوټه یا برخه
Lobus occipitalis د سر د څټ یا
د شا خوا ټوټه برخه
Lobus paritalis د سر د هډوکي
د څنګ ټوټه یا پارچه

Lobus superior د سرې پورتنۍ ټوټه یا پارچه
Lobus temporalis د کوپړۍ یا سر د هډوکي
د څنګ هغه ټوټه ده چې د خوب کولو ټوټه یا پارچه ورته هم ویل کېږي
-loge/-login ، -logie (gr. Lógos) له یوناني کلمې لوګوز
څخه اخستلې شوې ده علم، پوهه نومېږي
-logie (gr. lògos) د پوهې او علم زده کړې ته وايي
لوګي یا لوژي د یوناني کلمې هغه برخه ده چې پوهې
زده کړې، تعلیم ته ویل کېږي
-loge د طبي مسلکو، یا ځانګړې ناروغیو پوه ډاکتر
یا د همغې رشتې یا ناروغي متخصص ډاکتر ته وايي
Logopaedie د غاړو، غږ او خبرو کړو یا غږیدو
د درملني رشته یا طبابت
Logopathie د ژبې یا غږیدو ستونځې
په غږیدلو کې مشکلات
Logophobie دا یوه ناروغي ده چې شخص
له غږیدو څخه ډارېږي
Logorrhoe روانه غږېدنه، هغه غږیدل چې
نه کنترول کېږي داسې چې یوواري په
خبرو پیل وکړي بیا نه دریږي
Lokal (lat. Localis) سیمه، سیمیز، موضعي
Lokalanaesthesie سیمیزه بې حسه کول
موضعي انستیزي
Lokalisation هر هغه څه چې د بدن په یوې
ځانګړې سیمې پورې اړه لري یا محدود وي
longitudinal (lat. Longitudo ) اوږدوالی
Longus اوږد، طویل،دراز
lordo- = Lordose, (gr. Lordòs) کږوالی، انحنا

Lues (lat. Lues) = Syn. Syphilis یو ډېر کلک یا سخت پرهار یا شانکر دئ چې د جنسي اړیکو یا یوځای کېدلو له کبله مینځ ته راځي یا یوه کرونیکه زهروي ناروغي ده چې لامل یې تریپونوما پالیدوم دئ. دغه ناروغي په ټوله نړي کې خبرېږي خو د پینیسلین د کشف له وخته تر یوې اندازې له مینځه تللې ده

lumbo- (lat. Lumbus = Lende) د ملا هغه برخه ده ورته وایي (L1-L5) چې څلور بنده یا څهاربند

Lumbal هر هغه څه سره چې د ملا دغه برخه مخامخ کېږي

Lumbalanaesthesie = Spinalanaesthesie د کرخته کېدلو هغه طبي درملو ستنې وهل یا زرق کول د لومبال د دو مریو یا فقرو تر مینځ په شوکي نخا کې عصب ته نږدې تر سره کېږي

Lumbalpunktion د ځینو ناروغیو د لابراتواري څېړنې یا تشخیص لپاره د لیکور لاسته راوړنې لپاره لومبال پانکشن یا پانکسیون تر سره کېږي

Lumbosakral هر هغه څه یا ناروغیی سره چې د لومبال او سکرال سیمه مخامخوي

lumbus (lat.), die Lende څهاربند، ملا

luna (lat.) سپوږمۍ په نیمایي حالت یا هلال، مهتاب، قمر

lunula د هلال ډوله یا نیمایي سپوږمۍ په شان جوړښت لکه د نوکانو وروستۍ برخه

Lunatummalazie د لاس د ورغوي له لاټیرال خوا څخه میډیال یا مینځ خواته دویم هډوکي ته وایي

luteus ژېړ، زېړ

Luxation, (lat. Luxare) بې ځایه کیدل، په دیر زور سره په تیره د لاسونو کشول دیوه بند د دې لامل ګرځي چې سیمه یو له بل څخه کش او بې ځایه شي او په دې اساس د بند سطحه له هډوکي څخه خپلي اړیکې له لاسه ورکوي

Luxationsfaktur د هډوکي ماتیدل چې په یوه وخت یا همزمان کې دې بند یا بندونو بې ځایه کیدلو سره یوځای وي

Lympho- (lat. Lympha) د بدن یا وجود د ژغورنې یا دفاعي سیستم ته ویل کېږي

Lymphadeno- د ژغورنې یا دفاعي سیستم غوټې یا غدې

Lymphadenom لمفاوي غوټو پړسوب، تومور له نورمال حالت څخه غټوالئ

-om اوم د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې پاړسوب یا له نورمال حالت څخه ډېر غټېدېلو، لویدلو ته وایي

Lymphadenitis د لمفاوي غوټو التهاب

Lymphadenopathie د لمفاوي غوټو ناروغي

Lymphangiom د لمفاوي رګونو یو نوئ مینځ ته راغلئ جوړښت یا تومور ده

Angiom د رګونو پاړسوب، غیر طبعي غټوالئ

Lymphangiopathie د لمفاوي رګونو ناروغۍ چې په دوه ډوله دي **الف:** لومړنۍ یا پرېمېر(د زېږون له وخته) لکه اتریزي، اپلازي،ایکتازي، کیستونه او یا لمفانګیوم **ب:** سیکندیر یا ثانوي(کسبي)دي لکه لمفانګیتیز یا د لمفاوي رګونو التهاب

Lymphangitis — د لمفاوي رګونو التهاب، لمفاوي
رګونه هغه ته وايي چې په هغه کې لمفاوي مواد يا د بدن
د ژغورنې مواد چې د شيدو په شان رنګ لري بهيږي
يا جريان لري

Lymphatic Leukaemie — د لمفاوي ژوانکو د ډيرښت
له کبله مينځ ته راځي

lymphatic System — د بدن د ژغورنې سيستم
يا معافيتي سيستم

Lymphe = Lymphcele = Lymphocyt — د ژغورنې
ژوانکې يا لمفاوي ژوانکې

Lymphonodie — د لمفاوي رګونو په بهير کې
د نسکو له غټوالی تر د پليو دانو پورې ګردې هوارې
يا بشقاب ډوله اندازې پورې غټې غوټې
يا غدو ته وايي

Lymphoblast — هغه لمفاوي ژوانکه چې نه وي
پخه شوي يا نه وي رسيدلي

Lymphocytopenie — له نورمال حالت څخه
د لمفاوي ژوانکو لږوالئ

Lymphocytose — د لمفاوي ژوانکو ډير والئ نسبت
طبعي حالت څخه

Lyse, -lyse, lyso- (gr. Lýein) — ليز د بيلونې، حل کولو
منحل کولو ته وايي

-lyse : — د کلمې هغه برخه ده چې منحل کولو ته وايي

Analyse — چڼ کول، فلتر کول

Litholyse — د تيګو يا ګاټو منحل کول

Cholelitholyse — د صفراوي تيګو منحل کېدل

Paralyse — په ټوليزه توګه،په مکمل ډول فلج

Pleurolyse پلایرولیز د پلایرا، پلورا یا د تورکس
د دننه پردو سرېښوالي يا سره نښتلو بيلولو ته وايي
lyso- :
Lysosomen

## M

M., Musclus (Musckel) عضله، غوښه، ماهیچه
Macula lutea (lat.) زېړه لکه يا داغ د سترګې په شبکه
کې، زېړ داغ، لکه
Magnus (lat.), major, majus, maximus لوي، ستر
غټ، لوړ
Major لوی، غټ
Minor وړوکئ، کوچنئ
makro- ( gr. Makrós ) له یونانی کلمې مکروز څخه
اخستلې شوي چې غټ، پراخ، اوږد معنی ورکوي
Mikor- وړوکئ، لنډ
Makroangiopathie د وينې د غټو او لويو رګونو
ناروغۍ ته وايي لکه د اکستريمټيټ يا د لاسونو او پښو
ابدومينال، کورونار، اکسترا، او انتراکرانيال او نورو رګونو،
چې تر ډېره ارتيريوسکاليروز نيولي بند کړی وي او تر ټولو ډېر
د ډيابيتيک ماکروانګيوپاتي چې د خوږې د ناروغۍ لرونکی
ناروغانو کې دې دغه ناروغۍ له کبله مينځ ته راځي
Makrocephalie په غير نورمال ډول د سر
يا کوپړی له حده ډير غټوالئ
Makrocheirie په غير نورماله توګه د شونډو غټوالی
لکه د تراوما له کبله مينځ ته راغلئ هيمانجيوم
Makrodontie له حده ډېر غټ غاښونه

Makroglossie پە غير نورمالە توگە د ژبې ډېر لويوالئ
يا غټوالی لکە پە هايپوتيريوز، ډون سندروم
Makrohaematurie پە ادرار يا يورين کې د ډېرې وينې ليدنە
البتە پە سترگو د مقدار پە اساس شتوالئ او بهر کيدل
Makrophthalmie پە غير نورمالە توگە د سترگو غټوالئ
Mikrophthalmie پە غير نورمالە توگە د سترگو وړکوالئ
Makropsie =Metamorphopsie د يو شي ډېر لوی او
غټ ليدل يا هغە شئ چې پە سترگو بې لە کومې آلې
څخە د ليدلو وړ وي، يعنې څوواړې لە خپلې اندازې غټ
ښودل يا ليدل کيږی
Makrosomie لە حدە زياتە ودې، ديواسايي ودې
ډېرە غټە تنە يا بدن
Makrostomie = Stomatoschisis يوې خواتە دې
خولې يا دهن پراخوالئ، لويوالئ چې د مخ کاسە هم
همغې خواتە کږېږي، ډېرە لويە، پلنە، بردارە خولە
Makrotie د غوږ د موشل يا د غوږ د پکې لە حدە
ډېرە لويوالي تە وايي

Mala (lat.) = Bucca غمبوري، وننگي
malazo- (gr. Malakós) سست، پوست، نرم
Malazie سستی، پوستوالئ، نرموالئ
Bronchomalasie د برانش د ديوال نرموالئ
يا سستي، عدم کفايي تە وايي
mal- (lat. Malus) لە لاتينې کلمې مالوس څخە چې
بد، خراب،کوم شئ چې ښە نە وي يا پە زړە پوري
نە وي اخستلې شوې دە
Maldescensus (lat. Descensus) د مالدېسينسوز د ښکتە
کېدلو، ځوړندېدلو ستونځې نومول شوي

Maldescensus testis د خصیو یا خوټو په نورمال ډول
د هغوي کڅوړه ته نه ښکته کېدلو ته وایي
maligno- (lat. Malignus) بده، خبیثه، چنګاښ، سرطان
Maleolus lateralis د پښې بهرنۍ خوا واړه هډوکي
Malleolus چکوش ته ورته هدوکي، چکوش ډوله هډوکي
Malleus چکوش،په اناتومي کې چکوش ته
ورته جوړښت په غوږ کې
Mala,Malum, Malus هغه څه چې ښه نه وي، بد، خراب
نه خوښوونکئ شي
Malus هغه شئ چې ښه نه وي، بد، خراب
herba mala
herba واښه، شنه، ترکاري
mixtum malum د ښه او بدو یوځایوالئ
mixtum یوځای، د څو شیانو یوځایوالئ
morbus malus بده ناروغي
morbus (lat.) یوه لاتینه کلمه ده چې ناروغي، مریضي

Mamma (lat.) ماما یوه لاتینه کلمه چې ښځینه تیوو، ثدیو
او دهغوي غدو (ګلاندولا ماماریا) ته ځانګړي شوي ده
Areola mammae د تیوو د څوکو نصواري رنګه سیمه
Papilla mammae د تیوو څوکې
Mammaabscess د تیوو په غدې کې د چرکینو
یا قیحی موادو تولیدنه
Mammabiopsie د تیوو له غدې څخه د ناروغیو
د څېړنې او تشخیص لپاره دنني موادو پارچه، نمونه، سمپل
اخستلو ته وایي
Mammakarcinom د تیوو د غدې سرطان

Mammaplastik د جراحی عملیات په مرسته
د ماما بیا رغونه یوه فیزیولوژیکي شکل (ایوماستي) یا لومړني حالت ته
Mammatumor تیوو په غده کې د دانې یا تومور شتوالئ
Mammographie د رادیولوژی د وړانګو په مرسته
د تیوو د غدې د محتویاتو او د جوړښتونو او همدارنګه ورپښې شوې ناروغیو له کبله بدلونونو ښودنه
mammotrop کوم څه چې د تیوو په غده اثر لرونکئ وي

Mandibula (lat.) لاندني ژامه
Ramus mandibulae د لاندنۍ ژامې څنډه
Manie (gr. Manía = Raserei) په نورمال یا طبعي رواني حالت کې بدلون، ناخوالې، ستونځې یا په غیر ضروري توګه غږ پورته کول چې بیلابیل حالتونه ځرګندوي، روږدی، اعتیاد
Dipsomanie د څښلو روږدئ یا معتاد
Nymphomanie په ښځینه جنس کې
د هیتروسیکسوال یا مخالف جنس سره د جنسي یوځای کېدلو یا د شهواني هیلو ډېروالئ
manifest نښې، اعراض او علامې
Manifestaion (lat. Manifestare, Manifestus ) د د لېدلو وړ
یوې ناروغۍ پېژاندنه د روښانه نښو په درلودلو سره چې د لاتېنۍ یا نښې نلرونکې ناروغۍ برخلاف وي
Manipulation (lat. Manipulus) له لاتینې کلمې
مانیپولوس څخه اخستلې شوې چې یو موټئ، یو ډک لاس یا یو ډک موټئ، همدارنګه یو ځانګړي فن، هنر، لاسي کار ته ویل کېږي چې موخه یا هدف یې په طبابت کې د جراحي عملیات دئ

Manubrium لاسي کار، لاسي فن او هنر
Manubrium mallei چکش په مرسته کار، چکش کاري

manuel (lat. Manus = Hand) له لاتينې کلمې مانوس
څخه چې لاس، لاسي معنی ورکوي اخستلې شوې ده
Manuelle Medicin = Chirotherapie جراحي درملنه
لاسي طبابت
Beimanuell په دواړو لاسونو يو کار سرته رسول

Margo (lat.), Pl. Margines څنډه، کنار، لبه لکه
موسکولوز اکوټوز يا تېره څنډه چې ډېر شمېر يا جمعه
يي مارګينيس نومولې شوې ده

Masern = morbilli يو انفيکسيوني يا وېروسي ناروغي
ده چې ورته شرئ يا سرخان وايي چې تر ډېره واړه
ماشوان پرې اخته کېږي
Masseter ماسيټير يوه يوناني کلمه ده چې شخوند وهلو
ته وايي خو دلته موخه ترې د شخوند وهلو عضله هدف
ده يعنې هغه عضله چې په شخون وهلو کې مرسته کوي

maskulin (lat. Masculinus) نارينه، نارينه جنس
feminin ښځينه جنس، ښځينه

masto- (gr. Mastós) ښځينه تي يا ثدي، د تيوو غدې
يا د تيو څوکې
Mastalgie = Mastodynie د تيوو د غدې يا ثديو درد

Mastektomie = Ablatio mammae, Mammaamputation د
جراحي عمليات په مرسته په ښځينه جنس کې
د پرمختللي سرطاني ناروغۍ له کبله د ثديو
يا تيو د غدې پريکول او لريکول
Mastektomie subcutane د ماما لرې کول
د پوستکي لاندې پدې شکل چې پوستکۍ يا جلد يي
ساتل کېږي
Mastitis د ماما يا د تيوو د غدې التهاب
Mastodynie د تيو د غدې درد
Mastoid تيوو ته ورته جوړښت ته وايي لکه د غوږ
د پکې شاته يو لکۍ لرونکۍ هډوکۍ دئ چې په ښه توګه
د جس يا لمس وړ دئ، داسې ښې چې ماميلا وي
mast د تيو څوکې، زخي يا د ثديو څوکو
-oid د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې ورتوالئ
لکه، شباهت لکه، يو شي ته ورتوالئ
Mastoidektomie د تيوو څوکو ته ورته جوړښتونو
يا ماستوئيد د ټولو ژوانکې چې ورته لاسرسئ وي
لرې کول، پريکول
Mastoideus د تيوو څوکو ته ورته، زخو و ته ورته جوړښت
کومې چې پروسيسوز ماستوئيديوز پورې اړه لري
Processus mastoideus = Mastoid
Mastoiditis د ماستوئيد التهاب
Mastopathie د تيوو، ثديو د غدې هغه ناروغۍ چې توموري
نه وي بلکې هورمونو پورې اړه لرونکې ډيجينيراتيف او
يا پروليفيراتيف بدلونونه په نوملې شوې غده کې وي
Mastoptose ځوړندې ثدې، له اناتوميکې سيمې
څخه ټيټې د تيوو د غدو شتون يا موقعيت
Mastopexie اوپراتيفي ټينګول يا تثبيتول د تيوو د غدو

Masturbation تر ډېره حده په لاسي يا عمدي توګه
د جنسي اورګان ستيمولاسيون پېژاندل شوئ چې په
اصل کې د اورګازم رهبرئ يا لارښودونکئ ته ويل شوئ

Mater (lat. = gr. Meningo-) = syn. Dura Mater دمغز
په تېره بيا د شوکي نخا يا حرام مغز پوستکي يا پوښ ته وايي
matrix, matricis (lat.) يوه لاتينه کلمه ده چې د مور، د
يوه اورګان د نطفې يا تخم، طبقې، يا پوښونو ته وايي
maxilla(lat.) پاسني يا پورتني ژامه، د پورتنۍ ژامې هډوکي
Tuber maxillae
Maximus ډېر لوړ، ډېر غټ
meatus (lat.) لاره، د تيريدنې لاره
Meatus acusticus externus د اوريدلو بهرني لاره
د اوريدلو يا غوږ د باندې لاره
medio- مينځ، مينځني، متوسط، وسط
medial مينځني برخی ته يا مرکز ته نزديوالئ
lateral له مينځني يا مرکزي برخې څخه لريوالئ
يعنې د بدن له مرکزي برخې څخه لري پرته سيمه
median د بدن د مينځنۍ برخې يا محور سره
په يوه سطحه يا هوارۍ، هم سطحه
medialis ميډياليز د بدن مينځنۍ برخې يا محور
ته نزدې يا نږدې شتوالي يا پروتوالي ته وايي(خو نه په
مرکزي يا مينځ کې شتون يا پروتوالئ څکه چې هغه
ته ميډيوز، ميډيانوز) ويل کېږی
Facies medialis
medianus په مينځني سيمه کې شتوالئ، قرار درلودل
Crista sacralis mediana
Medianebene = Sagittalebene هغه مينځنۍ ليکه چې تنه
يا بدن په مخې او شا دو برخو ويشي

Mediastinum (lat. Quod per medium stat) یوه لاتینه
کلمه ده چې هر هغه غړي یا اورګانونه چې په مینځنۍ یا
مرکزي سیمه د تورکس یا ټټر کې شتون ولري چې په اصل
کې د تورکس د خونې یا جوف مینځنۍ سیمې ته وایي
Medicina (lat. = gr. -iatrie) طبي فن، طبي هنر
د طبي درملنې ډولونه

Medicus (lat. = gr. Iatro-) د طب ډاکتر، طبیب
ad usum medici هغه مواد یا درمل چې د طب ډاکتر
ترې ګټه اخلي یا د طب ډاکتر ئي پکاروي
Medius مینځنۍ، مرکزي، په مینځنۍ سیمه کې شتون
Medulla (lat.) مغز، ښبه،هدف ترې د هډوکي مغز دئ
Medulla renalis د بډوډو دننه محتوي یا مغز
Medulla spinalis د شوکي نخاع مغز یا حرام مغز

mega-; Megalo- (gr. Mégas) لوي، غټ، اوږد، غیرنورمال
غټوالئ، یا لویوالئ
Megakolon د غټو کولمو له حده یا اندازي زیات
پراخوالئ، له حده ډېر لویوالئ
-megalie د کلمې هغه وروستۍ برخه ده چې موخه
ترې ډېرغټوالی یا ډېرلویوالی نومول شوی
Akromegalie غیر نورمال یا غیر طبعي وده
یا غټوالی د بدن د غړو یا اندامو لکه د لاندیې ژامې
د سترګو د هډوکو کاسې، پزه، لاسونه او داسې نور
megalo- (gr. Mégas, megále) غیر نورمال غټوالی
Megaloureter د یوې خوا یا دواړو خواو د ادرار
د لېږدونې لارې یا حالب ډېر غټوالی، چې کېداې شي
کانجینیټال وي او دغه پېښه په نوو زېږېدلو نارینه جنسه
ماشومانو کې د ښځینه جنس په پرتله ډېر ښودل شوي

Megaureter = Megaloureter لوي یا ډېر غټ حالب

melano- (gr. Mélas) تور رنګ، تیاره (چې له نصواري
تر تور رنګ پورې)، خړ رنګ
Melancholie (gr. Melancholìa) = syn. Episode توررنګه
صفراوي یا تور رنګه د تریخي د کڅوړې ترخه مواد
میلانخولیا
Melanin تور رنګ ورکونکي مواد
Melanocyts لغوي معنی یې هغه ژوانکې دي
چې میلانین جوړوي، یعني د تور رنګ ورکونکې ژوانکې
Melanodermie وړانګې که هغه طبعي وي که
مصنوعي کولاي شي چې د بدن د پوستکي د رنګ دې
تیاره کیدو لامل ګرځي
Melanom یو د پوستکي تور رنګه پاړسوب یا تومور
ته وایي او په ندرت سره په موکوز کې هم پېښېږي چې
دې مضر یا خطر ناکه یا خبیث دئ چې باید ځومره چې
شونی وي د جراحي عملیات په مرسته پریک او لري شي
Melanose معمولاً د میلانوډیرمي په ځای
همدارنګه میلانوز پکارول کېږي چې (میلا په معنی د تور
او -اوزه د پای ټکي د ناروغۍ حالت، د ناروغه لرونکي
بدلونونو ځرګندونه) نومول شوې ده
melanotrop هغه لاملونه چې پیګمنتي ژوانکې
هڅوي یا تحریک کوي چې تور رنګ ونسي

melo- (gr. Melòs = Lat. Membrum) په لاتینه طبي ژبه کې
د نارینه جنسي غړئ یا پینس
Membran (lat. Membrana) نرئ،نازکه پوستکئ یا ظریفه پرده
Membrana tympanica د غوږ پرده، د ډوهل پوستکئ
Membrum غړئ، پرده،عضو

meno- (gr. Mén, Menòs) میاشت موخه یا هدف تري
د کال میاشت دئ
Menarche په نجونو کې لومړني د پیغلتوب یا بلوغ نښه
چې د لومړي ځل لپاره میاشتني وینې بهیدنه
یا مینستروشن، خونریزي لیدله کیږي
arche (gr. Arché) ارښ یا ارش چې یوه یونانی کلمه ده
او پیل، اصل،چینه، منبع، مبدا ته وایي

meningo-, meningio-, meningeo- (gr. Méninx, méningos = lat. Mater) د مغز پوښ په تېره بیا د حرام مغز پوښ
Meningocele د حرام مغز د پوښ یا مینینګ ځوړندیدل
هیرنیا یا چوره کېدلو ته وایي لکه په سپینا بایفیدیا
Meningeom ; Meningiom د دماغ او د حرام مغز
مینینګین او یا د اراکنوئیدیاماټر د ډېلو ژوانکو په ورو ورو
یا تدریجي توګه وده کونکئ یو ښه یا سلیم تومور ته وایي
Meningitis د دماغ د مغز او شوکي نخا یا حرام مغز
کلکوو اویا پستو ، نرمو مینینګین التهاب ته وایي
Meningitis cerebralis د مغز د اراکنوئیډیاماټر التهاب
Meningitis cerebrospinalis د مغزو او شوکي نخاع
د مینینګین التهاب
Meningitis spinalis د فقراتو د تیر مغز یا حرام مغز
مینینګین التهاب
Meningoencephalitis د میننګین او اینسیفالو التهاب
ته وایي
Meningokokken = syn. Neisseria meningitidis
د غونډاري په ډول باکتري، هغه چې د مغز د مینینګین
د التهاب لامل ګرځي

menisko- (gr. menískos = lat. Menisco-, Meniscus) دې نوې
يا څو ورځو سپوږمۍ په شان يا هلالي ډوله جسم چې
موخه يا هدف ترې دې زنګنونو د بندونو يا مفصلونو حلقې
دې چې اوبجنې يا غوړينې دي چې دغه د زنګانه دې بندونو
هډوکې په خپل مينځ کې له سولېدو او تخريب کېدو ژغوري

Meniscofemoralis د ورانه د هډوکي مينيسکوز

Meniskektomie د مينيسکوز لرې کول

Meniscopathie د يوه مينيسکوز يا د بندونو د ګردو
حلقو ناروغۍ

Meniscus د بند، مفصل ګرده حلقه

Menopause په ښځينه جنس کې د مياشتنۍ وينې
بهيدنې، خونريزۍ پای ته رسيدل

-pause (gr. Paúein) پاوز، پاوزه يا پای، اخر د کلمې
هغه برخه ده چې له يوې يوناني کلمې پاوئين څخه
اخستلې شوې چې پای ته رسېدل، اخر نومېږي

Menorrhagie د مينستروېشن يا مياشتنۍ وينې بهيدلو
ډېروالئ او اوږد محال والئ څرګندوي

-menorrhoe مياشتنۍ وينه بهيدنه، البته په ښځينه
جنس کې

-rhoe bzw. -rrhoe بهير، بهيدل، روانيدل

Mens(lat.) مينز، مينس چې پوهې،علم ته وايي
چې دا بايد له مينتوم چې له زنه، زنخ ته وايي غلطه نشي
يا اشتباه ونشي

Mens sana يوه لاتينه کلمه ده چې روغ روح يا عقل
په روغ بدن کې معنی ورکوي لکه چې وايي سليم عقل
په سالم بدن کې وي

menses, mensium (lat., Pl. ) = syn. Menstruation میاشتنۍ
وینه بهیدنه چې تل ډیر شمیر یا جمعې په شان پکارول کېږي

Menstruation (lat. Menstruum) په ښځینه جنس کې
د پېغلتوب له وخته تر څو چې مینوپوز وخت رسېږي په
نرمال ډول د میاشتې یوارې وینه بهیدنه له درې تر
شپږو ورځې صورت نیسي چې ورته میاشتنۍ وینه بهېدنه
یا خونرېزي هم وایي

mentum زنه، زنخ

Mesencephalon مینځنئ دماغ، د دماغ منځنۍ سیمه

meso- د کلمې هغه لومړۍ برخه ده چې مینځ، تر مینځ
د دو شیانو یا غړو تر مینځ، مینځنئ

Mesocolon دې میزانتیریوم په مرسته د کولون یا
غټو کولمو نښلول د ابدومن د شا په دېوال یا جدار باندې

Mesonephros میزونیفروز د ایمبریوجینېز په وخت کې
د بډوډو شتوالي ته وایي چې بیا د دویمې میاشتې په
پای کې هغه ببرته ورکېږي او بیا د بډوډو په وروستۍ
شکل مینځ ته راځي، د بډوډو تر مینځ مرحله

meta- (gr. Metá) په دننه کې، تر مینځ، شاته، وروسته
او همدارنګه بدلونونه

Metacarpalfrakur د لاس د مینځنیو هډوکو ماتیدنه

metacarpus د لاس مینځنۍ برخه هغه سیمه ده
چې د لاس د بیخ یا ریښو او د ګوتو یا پنجو تر مینځ شتون
لري( چې د کارپوس شاته قرار لرونکي) ته وایي

Metaencephlon د اینسیفلون شاته شتوالئ ! له میټا چې
په کیمیا کې د بینزول حلقې څخه موخه ده باید بیل شي
یا وپېژانده شي

Metamorphose د شکل، هیکل، اندام بدلېدلو ته وایي

Metamyelocyt ځوانې میالوسیټ، د میالوسیټ او
د رسېدلو ګرانولوسیټ تر مینځه د پرمختګ مرحله ښي

Metastase (gr. metàstasis) لېږدیدنه، د سرطان
د دانې چې مور یا د اصلي تومور ځای په یوه اورګان کې
او لوښې یا بچي یې نورو اورګانو ته د وینې، لمفاوي سیستم
او یا ګاونډېتوب له کبله لېږدول کېږي
metastatic هر هغه حالت یا ناخوالې چې
د لېږدېدونکي تومور له کبله پېښېږي

meter هغه آله ده چې د شیانو اندازه کول پري کېږي

metopo- (gr. = lat. Frons ) مخه، وړاندې = تېنده، وچولئ
Metralgie د رحم درد
metrie (gr. Métron) میچ کول، اندازه کول

Ergometrie د بدن یا وجود د کار، فعالیت، توان
او قدرت اندازه کول د ارګومتر په مرسته ته ارګومیتري
وایي چې په پاي کې د زړه او د سږو ګراف یا د هغوي
د کار قدرت او توانایي ښکاره کوي
Metritis = Myometritis د رحم د دیوال د بیلابیلو برخو
یا طبقاتو التهاب ته وایي
metrio- (gr. Métra, lat. Uterus) رحم، د ښځې د بدن
هغه برخه ده چې په هغه کې ماشوم د نطفې له وخته
تر زېږون پوري ساتل کېږي
Metrodynie د رحم درد
metro- =Hystero-(gr. = lat. Uterus) میترو او همدارنګه
هیستیرو یوناني کلمه چې په لاتینه یوټیروس ورته وایي
رحم نومېږي

Metrorrhagie د رحم څخه يوه غير منظمه وينه بهېدنه
يا خونريزی چې له څورلسو ورځو څخه ډېرې ورځې دوام
کوي او د مياشتنۍ وينې بهېدنې يا مينسترويشن څخه
پرته شتون ولري ميتروراژي ويل کېږي چې يا هورموني
لاملونو له کبله او يا خو اورګانيکي لاملونو له امله پېښېږي
mikro- = nano-(gr. Mikrós ) وړوکئ،ډېر لږ، بې مفهومه
او بې معنی شئ
Mikroangiopathie د وينې د رګونو د وړکيو يا ډېرو
وړکيو رګونو بدلونونو يا تنګېدلو له کبله پېښې شوې
ناروغيو تصوير لکه د ډيابيټس ميکروانګيوپاتي چې وروسته
بيا په ډيابيټيس ميليټوز کې

Mikroben مکروبونه
Mikrobiologie هغه علم ده چې له وړو ژويو، دهغو
چې په سترګو نه ليدل کېږي څېړي او يا بحث کوي
Mikrocephalie وړوکئ سر يا ډېره وړوکئ کوپړي
Mikrocheilie د شونډو وړکتوب
Mikrodaktylie د لاس او پښو د ګوتو وړکوالئ
د ګوتو وړکوالئ په لاسونو او پښو کې
Mikrodontie ډېر واړه غاښونه
Mikroglossie ډېره وړکئ ژبه
Mikrohaematurie په ادرار کې د وينې شتوالئ
کومې چې په سترګو نه ليدلې کېږي
Mikrokranie د سر د کوپړي( دماغ -) وړکی والئ
Mikrophtalmie په غير نورماله توګه د سترګو وړکئ والئ
Mikrorchie د خوټو يا خصيوو وړکئ والئ
Mikroscop هغه آله ده چې د هغو شيانو دليدلو
لپاره پکارول کېږي چې په سترګو نه ليذل کېږي

Mikrosomie = Nanosomie لږ وده یا نمو
وړوکۍ پاتېکېدل، یو انسان چې عمر یې ډېر او تنه یا قد
او اندام یې د ماشوم په اندازه وي
Mikrostomie یوه وړکۍ خوله، یوه وړکۍ اړیکه
Mikrotie د غوږ وړکي غضروف، د غوږ وړکۍ موشل
Mikrotrauma لږشانته ژوبلېدنه، ناچیزه ژوبله
وړوکې شانته ژوبلېدنه، وړوکې تراوما

minor, minus, minimus, parvus وړوکې، کوچني
Miosis (gr. Meíosis) وړکۍ کول، تنګول، دسترګو د تور،لېمو
یا پوپیلین وړکې کېدل، نزدې کېدل

Miotika داسې درمل شته دي چه د سترګو تور
یا پوپیلین تنګوي، وړکي کوي

mitis (lat.) نرم، ملایم، معتدل
Mitochondrion میتوښاندریا چې په ژوانکې شتون لري
Mitose (gr. Mítos) میتوز له یوناني کلمې څخه چې
تار نومېږي اخستلې شوي چې په اصل کې په غیر
مستقیمه توګه د ژوانکو ویشل دي، څکه چې
دلته کروموزومونه د لیدلو وړ وي
Mitral د زړه دننه هغه پردې دي چې د کینې خوا
د اتریوم یا اذین او د وینتریکولوم یا بطین تر مینځ پورې
اړه لرونکي
Mitralinsuffecience د میترال پردې یا د میترال والونه
په پوره توګه یا مکمل ډول خپله دنده ښه سرته نشي
رسولاي یا میټرال عدم کفایه
Mitralstenose د میترال د والوو تنګوالئ

Mitralvulvus (Valva atriuoventricularis sinistra) دوه
څوکې یا دوه غاښه پردې یا بادبانونه چپ د کینې خوا اټریوم
یا اذین او د کینې خوا وینټریکولوم یا بطین تر مینځ شتون لري
mixtum (lat.) ګډوډ،څو شیان او یا جنسونه سره
یو ځای کول، د دو بیلابیلو نسلونو څخه نوئ پیدا شوئ نسل
Mixtum malum د ښه او بد یوځایوالئ
modiolus (lat.) په بایسکل کې، یو خالي یا جوف لرونکئ
محور لکه د غوږ په مینځنئ سیمه کې د حلزوني
هډوکي محور، موډیولوس کوښلیا، وړه اندازه
Modiolus cochleae حلزوني ډوله جوړښت د غوږ
په دننه سیمه کې
modius پیمانه
molar د میده کولو یا ځپلو غاښونه
molaris هر هغه څه چې ځپلو یا میده کولو سره اړیکې لري
Dens molaris (lat. = Gr. Mylo-) د هر هغه څه چې
د ژامې غاښونو سره یا د ځپلو، میده کولو غاښونو سره
اړیکې لري
mollis پوست، نرم
mono- (gr. Mónos) یوازینئ، یوازې، یوالئ
Monarthritis = Arthritis د یوه بند یا مفصل التهاب
Monarthrose کله چې یواځې یو بند په ارتروز اخته
او یا یو بند یا مفصل له ناروغۍ سره مخامخ وي
Monartikulaer په هغه څه سره چې یواځې یو بند
یا مفصل مخامخ وي
Monobrachie د زېږون له وخته یا په کانجینیتال ډول
د یوه لاس لرونکئ یا د یوه لاس څښتن
Monochrom د یوه رنګ لرونکئ، یو رنګیز
Monokular د یوې سترګې لرونکي

Mononeuritis — يوازې د يوه عصب التهاب

Monoparese — يواځې د يوه اکستريميټيټ فلج ته وايي اما ځينې په دې نظر دي چې ا دا په مکمله توګه فلج نده بلکې د عضلاتو د پرمختللې ناتواني او کمزوري پايلې ښـي ده

Monophobie — له يوازيتوب څخه ويره، ډاريدل

Monopie — يوه سترګيزه،د زېږون له وخته ديوې سترګې شتوالئ

Monoplegie — د يوه اکستريميټيټ لکه د يوه لاس يا پښـې فلج ته وايي

Monorchie — يواځې د يوه خصيې شتون د خصيې په کڅوړه کې

mons, montis (lat.) — مونز يوه لاتينه کلمه ده چې د غره معنى ورکوي لکه مونز پوبيز

Mons pubis

Morbiditaet (lat. Morbidus) — د لاتينې کلمې موربيډوز چې ناروغ معنى لري اخستلې شوي او د ناروغۍ نوعيت څرګندوي يعنې د يوې ناروغۍ د پېښو د شمېر اندازه د يوې ځانګړې ناروغۍ له کبله په يوه ځانګړي وخت يا زمان کې د وګړو د شمېر په تناسب ته وايي يعنې په مقايسه د مورټاليټيټ

Morbilli (lat. Morbus) = Masern — له لاتينې کلمې وړوکي يا ناچيزه موربوز چې ناروغي نوموله شوې ده اخستلې شوې چې ورته نوم يي مازيرن هم ښودل شوئ

Morbus (lat. Morbus) — ناروغي، مريضي

morbus gravis — ډېره سخته ناروغي

Morphologie (gr. Morphé) ،Anatomie; له یونانی کلمې
مورف څخه چې جوړښت، شکل، فورم معنی لري اخستلې
شوې ده او مورفولوژي هغه پوهه یا علم ده چې د ژوي یا دې
ژوندي موجود له جوړښت، شکل، هیکل او فورم څېړي یا ترې
بحث کوي د بېلکې په توګه اناتومي
polymorph ډېر ډوله یا بیلابیل جوړښتونه، شکلونه
amorph بې ډوله، بې شکله، د ځانګړي جوړښت
نه درلودل
mors, mortis (lat.) مړینه، مرگ
1. M. subita نابېره مړینه، دفعتاً مړینه
2. M. ante mortem مخکې له مړینې
3. M. post mortem وروسته له مړینې
Mortalitaet, mortalitas د مړنې کچه، شمېر،مرگ ومیر

mortuus (lat. = gr. Nekro-) نکروز، مړینه،مرگ، له مینځه تلل
muko- (lat. Mucus) خراشکه، مخاط، بلغم
mukolytika (gr. Lytikòs) = Expektorance موکوز منحل
کوونکي، له مینځه وړل، ټوټه کوونکي
Mukorrhoe له حده زیات د موکوز یا خراشکې
بېلېدنه او بهر کېدل
Mukoes, mucosus له موکوز څخه ډک،مخاطي
mucusa د خراشکې جوړونکې پرده یا غشا
مخاطي غشا
Mukotympanon له موکوز څخه د یوې التهابي ناروغۍ
له امله د ټیمپانون د جوف ډکېدل
muliebris ښځینه
Morbus muliebris ښځینه ناروغي

multi- (lat. Multus) ډیر شمیر هر هغه څه چې حساب
کېږي او هر هغه شیان چې ډیر زیات وي او نه حساب کېږي
multicellulaer د ډیرو ژوانکو لرونکي، په هغه
جوړښت کې چې ډېرې ژوانکې شتون ولري
Multipara د ډېرو ماشومانو زېږونکې یا هغه مور چې
دوه یا له هغه زیات ماشومان یي په ګېډه ګرځولي وي
یا دنیا ته راوړي وي

Mumps = Parotitis epidemica ډه ډ غمبورئ، کلچرک
د پاروټیټ د غدې التهاب

Musculi (Mm, lat.) د ډېرو یا جمعې کلمه ده چې ماهیچې
عضلې، عضلاتو ته وایي
Mm. = plorum. د جمعې معنی لري
musculus (Dim. lat. = gr. Myo-, myos) ماهیچه. عضله
Dim. = Diminativum له لاتینې کلمې اخستلې شوې چې
د لږ، وړوکي معنی لري
Musculus biceps د هغو عضلو دستې چې دوه ککرې
یا دوه سره لري
(-ceps ،Caput) سیپز د کلمې وروستۍ برخه ده چې
له کاپوټ څخه اخستلې شوې او ککرۍ یاکوپړۍ معنی ورکوي
Musculus genioglossus ( gr. Genio- ) زنه، زناخ
Glosso- = ژبه، زبان
Anatomie : mentum = زنه lingua = ژبه
جینیو یا ګینیو زنې او ګلوزوس ژبې ته ویل کېږي دواړه یوناني
کلمې دي اما برسېره په دې دغه کلمو ته په اناتومي کې
یا لاتینه ژبه کې مینتوم زنې اولینګوا ژبې ته ویل کېږي
Musculus levator ani

Musculus pectoralis major د ټټر يا صدر پر مخ پرته
لويه عضله، ځينې عوام خلک ورته ځوږ، د ځوږ غوښـه
هم ورته واي
Musculus sphincter anie
Musculus omohoideus
Musculus opponenMusculus quadriceps
Musculus triceps هغه عضله چې درې سرونه
يا ککرې لري په دې ډول چې په خپل هر سر باندې
د هډوکو په يوه برخه ټينګېږي

myo- (gr. Mýos =Maus) ميو په يونانې ژبه کې ماهيچې
عضلې ته وايي
Myalgie = Myodynie د عضلو درد په سيميزه او يا ټوليزه
توګه چې تر ډېره حده له ميالګيلوز سره يوځاي وي
Myasthenie د عضلې د قوت، توانايی لږوالئ، کمزوري چې
د عضلې د عصب د ستونځو له کبله مينځ ته راځي
my (gr. Mys = عضله
a- = نشتوالئ
sthen = قدرت، اتلوالي، قوت،توانايي
-ie = i د کلمې دې پاي ټکي
Myatrophie مياټروفي چې لغوي معنی يې د عضلې
د تغذې نشتوالئ يا لږوالئ يا سوئتغذي ته ويل شوي ده اما
په طبابت کې مياټروفي د عضلې د اندازې او حجم يا
ډبلوالي لږوالئ ښودل شوئ يا ليکل شوئ دئ
Myadriasis د سترګو د تور،لېمو، مردمک چشم پراخوالئ
Myadriatikum هغه مواد يا درمل چې د سترګو د لېمو
د پراخوالی دنده ترسره کوي، د سترګو د لېمو پراخوونکې
مواد يا درمل

myelo- (gre. Myelós = lat. Medulla = Mark) نښه
نښاني، مارک، حرام مغز

Myelitis د حرام مغز، خړ مغز، شوکي نخا التهاب
او یا د هډوکي د مغز التهاب

Myeloblast یو نه پوخ شوئ یا نه رسیدلئ
د هډوکو مغز،هغه وخت چې د هډوکې مغز خپلې
اخریني مرحلې ته نوي رسیدلئ

myelo- = د هډوکي مغز

blast = ځوانې ژوانکې، نه رسیدلې ژوانکې

Myelocyt د هډوکي د مغز ژوانکه

Myelodysplasie د زېږون له وخته د شوکي نخاع
انومالي، غلطه وده

Myelographie د کانترستي موادو په مرسته
د شوکي نخاع ښودنه په رادیولوژۍ عکس، کلیشه کې

Myelomalazie په غیر طبعي توګه د شوکي نخاع
پوستوالئ، نرموالی

Myelopathie د شوکي نخاع، حرام مغز ناروغۍ او
یا د هډوکو د مغز ناروغۍ

myko- , myco- (gr. Mýkes) قارچ، پووپنکې، الجي، فنجاي

Mykologie د فنجایي ناروغیو څېړنه، پېژاندنه

Mykose مېکوز د یوې ناروغۍ هغه حالت څرګندوي
چې دې مېکوزي مکروب یا انفیکشن له کبله پېښېږي

Mykotik Balanitis د کلیتوریدیسز، پینیز التهاب
چې لامل یې مېکوز وي

Mykotoxin د مېکوز په مرسته یا واسطه زهري کېدل
مسموم کېدلو ته وايي

Mylo-(gr. = lat. Dens molaris) د ژامې غاښ، د ځپلو ژرنده کولو، میده کولو غاښ
Myodynie د بدن دې غوښو یا عضلاتو دردونه
Myokard د زړه دیوالونه چې له عضلې جوړ شوي دي د زړه عضله
Myokardbiopsie د زړه دعضلې څخه یوه ټوټه یا پارچه اخستل د تشخیصي څېړنو یا معایناتو لپاره
Myokardfibrose د زړه د عضلې د جوړښتونو مړینه چې په ځای یې فیبروز یا ریښو ته ورته جوړښتونه مینځ ته راځي یا په بل عبارت د زړه په عضلې کې د انټېرسټیشیال فیبروز ډېروالئ
Myokardinfarkt د عوامو په ژبه د زړه سکته په یوې نابېره یا دفعتاً توګه دزړه د هغې سیمې مړینه چې هغې سیمې ته د وینې د بهیر ستونځه پېښېږي یا وینه نشي رسېدلئ ځکه چې وینه آکسیجن لېږدوي صورت نیسي
Infarkt (lat. Infarcire) انفارکت له یوې لاتینې کلمې انفارکیر، انفارسیر څخه اخستلې شوې ده چې دننه دریدنه په دننه کې دریدل، توقف ته ویل کېږي چې د زړه په عضله کې سکته، احتشا
Myokardiopathie = Kardiomyopathie د زړه د عضلې ناروغی
Myokarditis د زړه د عضلې التهاب
Myokardnekrose د زړه د عضلې مړینه، ورستیدل له مینځه تلل
Myokardose د میوکارد یا د زړه د عضلې په حالت کې بدلونونه په دېس پروتئینمي کې
Myokardruptur د میوکارد چاودیدنه، د زړه دې عضلې چاودیدنه د تراوما یا نورو پیښو له کبله

Myoklonus د عضلې رېږدېدل، لرزه، ارتعاش، تشنج ته وايي

Myom د عضلې يا د ميزينښپمال، ميزينشپمال يو ښه
يا سليم تومور يا پړسېدنه ده. مېوم په رحم کې
د مينستېروشن د ډېروالی او اوږدوالی لامل ګرځي
Myo- عضله
-om نوئ پيدا شوئ ، تومور، غده، پاړسوب، دانه
Tumor هر هغه نوی مینځ ته راغلی بدلون دې بده په يوه
غړي يا سيمه چې دې پاړسوب په ډول وي تومور بلل کېږي
Myomatose په رحم کې د ډير شمير ميوم شتوالي ته
ويل کېږي يعنی د رحم عضله له ميوم څخه ډکه وي
Myometritis = syn. Endometritis د رحم د عضلې
التهاب ته ويل کېږي
Myometrium = syn. Uterus د رحم د عضلې د ديوال
طبقو ته ميوميتريوم وايي
Myopathie د عضلې پورې اړه لرونکې ناروغی

Myopie (gr. Myop) لنډ ليدنه، هغه څوک چې نږدې
شيان ويني او لرې نه ويني
Myorrhexis په عضله کې درز، چاود
myos- ميوز د کلمې هغه لومړی برخه ده چې
ماهيچه،عضله نومولې شوې ده
Myosakrom د عضلې بده دانه، د عضلې خبيثه دانه
Myosin منحل نه کيدونکي، دې ګلوبولين پورې
اړه لرونکي عضلي پروتين(چې تقريباً 60٪ دې ميوفيبريلين
وزن جوړوي)ويل کېږي
Myositis د يوې عضلې يا ډله ايزو عضلو يو التهابي
عکس العمل يا رياکشن ته وايي چې له يوې اکوټې
يا کرونيکې تګلارې سره مخامخ وي

Myospasmus د عضلې تشنج، شخوالئ

Myotrop د هرې هغې پېښې یا ناروغۍ چې عضلې پورې اړه لرونکې وي

myxo- (gr. = lat. Mucus) خراشکه،مخاط، مخاطي مایع

# N

N. = Nervus(Nerv) عصب

Nn. (Nervi) Pl. د جمعې نښه ده یعنې اعصاب

Na. (Natrium) سودیوم

Nacl (Natriumchlorid) د خوړو مالګه

Naevus (lat.), Pl. Naevi د زېږون له وخته یا وروسته مینځ ته راغلي د عوامو په ژبه خدائي خالونو ته وايي

nano- = mikro- هغه څه چې په سترګو نه لیدل کېږي میکروسکوپي شیان

Nanomelie د کوم غړي یا اندام غیرنورمال ډېر وړکتوب

Nanosomie = Mikrosomie لږ وده لکه ماشوم پاتېکېدل د بدن وړکي پاتېکېدل

naris د پزې یا سپوږمو سورکي

nares, narium(im plural) پزه یا دې بویولو آله یا اورګان نومول، د شامعې حس

Naso- Rhin-, Rhino- پوزه، پزه

Nasus = Rhin تنفس یا هوا اخستلو د لارې پیل،سپوږمې،پزه

Alae nasi(lat.) د پزې پردې یا وزرونه

Dorsum nasi (lat.) د پزې شاخواته

Limen nasi (lat.) د پزې پولې، سرحدات

navicula یوه نازکه ټوټه لکه زرورق، وړوکې بېړۍ، کشتۍ

navicularis هر هغه څه چې ناویکولا سره اړیکې لري یا نویکولا ورسره مخامخ وي

Os naviculare = Ossa tarsi — نازکه هډوکئ، بېړی ته ورته هډوکئ

nekro- (gr. Nekos = lat. Mortuus) — مړینه،مړه شوي له مینځه تللې

Nekropsie — د مړي یا جسد لیدنه، کالبد شکافي

Nekrose — په پتالوژیکه توګه د بدن د ژوانکو یا جوړښتونو مړینه یا له مینځه تلل او بدلدنونو ته چې په تحریکي ډول او نه پلان شوی توګه ترسره کېږي او تر بهرني اثر لاندې مینځ ته راځي نکروز وایي لکه سوځیدل توکسن او انفیکسیون چې دلته یوه افلامسیون یا دې التهابي پیښې شتون ضروري ده او په اپوپتوز کې بیا چې یوه فزیولوژیکه بڼه لري او د پروګرام له مخې دې ژوانکو مړینه ترسره کېږي تر څو د اورکانیزم مساوي انډول د ژوانکو د تقسیم او مړینې وساتل شي دغه دې اپوپتوز عملیه د فګوسیتوز دې ژوانکو په مرسته ترسره کېږي او کومه سیمیزه التهاب په کې کوم اثر نه لري

nekrotic — له مینځه تللې، مړه شوي

neo- (gr. Néos=neu=lat. Natus) — نوي، نوي زېږدلئ ماشوم

Neoblast — نوې مینځ ته راغلې ژوانکې چې د پېژاندنې وړ نه وي، غیر تفریقي ژوانکې

Neogenese — نوئ جوړشوئ، نوئ مینځ ته راغلئ

Neoplasie — د بدن له جوړښتونو یا تشیو څخه نوي جوړشوي جوړښتونه چې پخوا یا نورمال وه او یا خو هم یې شتون نه درلود لکه د پرهار درغولو لپاره د ګرانولویشن جوړښتونه یا ساختمانونه او لکه دانې یا تومورونه دي

neonatal له زېږون څخه وروسته د هغو لومړيو ګړيو
لحظو يا وخت څرګندونه ښي
Neonatalogie هغه پوهه ده چې دې
نوي زېږدلي ماشوم پيريود يا دوران تر څېړنې لاندې نيسي
او بحث ترې کوي او د ماشومانو د طب يوه برخ جوړوي
Neonatus نوئ زېږدلئ شوئ يا نړۍ ته راغلى ماشوم
Neoplasma د بدن له ژوانکو يا جوړښتونو څخه نوئ مينځ
ته راغلئ شئ چې پخوا نورمال او يا يې شتون نه دردرلود
لکه تومور

nephro- (gr. Nephrós = lat. Ren) بډوډي ، پوښتوړړي
ګرده ، کليه
Nephralgie د پښتوړړو درد، د بډوډو درد
Nephrektomie د پډوډي د يوه لوي يا غټ تومور
په شتون کې بايد د شونتيا په صورت يا امکان په صورت کې
يو بډوډئ په مکمل ډول لرې شي يا وويستل شي
Nephritis = Glomerulopathie; Pyelonephritis; Balkan-
Nephropathie د بډوډو يا پوښتوړړو التهاب
Nephrocirrhose د بډودو سېرهوز، سېروز
د بډوډو ګونجوالئ، چين او چروک درلودل
nephrogen کوم شئ چې له بډوډي څخه
سرچينه نيسي، مينځ ته راځي يا له بډوډي څځه بهر کېږي
Nephrographie د راديوګرافۍ د وړانګو په مرسته
د بډوډو دننه جوړښتونو او ورپېښې شوېو ناروغيو ښودنه
ښکاره کول
Nephrolith د تيګې، تيګو يا ګاټو شتوالئ دبډوډي
يا بډوډو په جوړښتونو يا پرانشيم کې
Nephrolithiasis د تيګې شتون په بډودي کې

Nephrilithotomie = Nephrotomie دا د یوه جراحی عملیات
تګلاره یا پروسه ده چې د هغې په اساس د بډوډي تیګې
لري کوي یا ویستلې کېږي
Nephrologie د نیفرولوژي یا د بډوډو پېژاندنې
پوهه، هغه مسلک یا رشته ده چې د بډوډو دې دندې
او ناروغۍ د څرګندونې او پېژاندنې سره مصروف دي
یا اړیکې لري
Nephrom د بډوډي دانې یا تومور
د بډوډي کارسینوم،د بډوډي پاړسوب یا غټېدلو ته وایي
Nephropathie د بډوډو ناروغۍ
Nephropathie diabetic = diabetic Nephropathie = diabetic
Glomerulosklerose دې بډودو هغه ناروغۍ چې
د خوږې د ناروغۍ یا ډیابت د ناروغۍ له کبله چې ډیابیټیک
ګلومېرولوسکلیروز هم ورته وایي او دې دویمې ناروغۍ په
څیر یا ډول راڅرګندېږي یا مینځ ته راځي
Nephropexie د شونتیا یا امکان په صورت کې د یوه جراحي
عملیات په مرسته د بډوډي یا بډوډو ټینګول، تثبیت کول دهغه
په اناتومي سیمه یا موقعیت کې لکه نیفروپټوز او نور
Nephroptose د بډوډي ښکته کیدل یا ټیټیدل له خپل اصلي
یا اناتومیک ځای څخه
Nephropyelolithotomie د بډوډي د دننه جوړښتونو پرانستل
یا شق کول د هغه د تیګې په سر د دې لپاره تر څو چې
د بډوډي او د بډوډي د کاسې یا حویظې تیګې لرې شي
Nephrorrhagie د بډوډي وینه ورکول یا خونریزي
Nephrorrhaphie د بډوډي ګنډل
Nephrose = nephrotic Syndrom د بډوډي غیر نورمال حالت
ته ویل کېږي

Nephrotomie هغه پرانستنه چې یوازې د بډوړي د دننه جوړښت یا پرانشیم پورې اړه لري، د بډوړي د دننه جوړښت پرانستل

nephrotrop هر هغه څه یا ناروغۍ چې د بډوړي پورې اړه لري یا ورسره مخامخ وي

N. = Nerv(lat. Nervus) عصب

Nerv motoric (Nerv efferent) هغه عصب چې خوځوونکې دنده په غاړه لري لکه د موسکولوس خوځښتونه

Nerv sensoric (Nerv afferent) لکه د خوند یا مزې او د لاړو یا لعابي غدو څخه موخه ده

Sensibilis (lat.) د عصب حساس والئ لکه د پوستکي د جس یا لمس په وخت کې

Nn. = Nervi ( Nerven) اعصاب

Nerv system (anat. Systema nervosum) عصبي سیستم

Nerve vegetativ (lat. Vegere) ویجیټاټیف له یوې لاتیني کلمې ویګیر چې ژوند ورکول،نوې یا تازه نیرو ورکولو ته وایي خو په طبابت کې تر ډېره حده ویګیټاټیف نیرف سیستم یا اوټونوم نیرف سیستم تر ډېره حده له یوه غیر ارادي، نابېره بې خبره او په ناپوهۍ کې یوه عکس العمل یا ریاکشن سره، چې برخلاف د انیمال نیرف سیستم عمل کوي ښودل شوئ

vegetative Nervsystem = autonome Nervensystem Reaktionen

Vegetation (lat. Vegetatio) ویګیټاشن له لاتیني کلمې ویګیټاسیو څخه چې ژوندئ، ژوندي ساتل معنی ورکوي خو په طبابت کې په اصل ودې، نمو، ډېرېدل، تکثر ته وایي

Nervus (lat) نیروس، نیروز له لاتینې کلمې اخستله
شوې چې اعصاب معنی ورکوي
Nervus abducens ( VI) دا شپږم عصب دئ
Nervus ascendens د هر عصب هغه ځانګه چې
مخ ښکته پرته وي
Nervus frontalis (N. Ophthalmicus) د فرانټالیز عصب
د اوفتالمیکوز د عصب ځانګه ده چې دئ خپله بیا
د ټریګیمینوس د عصب لومړۍ غټه ځانګه ده
Nervus recurrens هر عصب د ریکورینس
یا بېرته ګرځېدونکې ځانګه لري
Nervus trigeminus (V) پینځم عصب دئ
neural هغه څه چې عصب ورسره مخامخ یا اخته وي
یا ورپورې اړه لري
Neuralgie عصبي درد
neuralgic هغه څه چې عصبي درد سره اړیکې لري
Neurasthenie د عصبي سیستم خستګي، کسالت
neuritic هغه څه چې د اعصابو د التهاب له امله مینځ
ته راځي یا هغه ناخوالې چې لامل یې عصبي التهاب وي
neuritis د اعصابو التهاب
neuro- (gr. Neúron = lat. Nervus, Nerv) عصب، اعصاب
Neurochirurgie عصبي جراحي
Neurocranium د عصب جمجمعه، د سر کوپړۍ، دمغز کوپړۍ
Neurogen کوم شئ یا هغه څه چې په عصب کې
مینځ ته راغلئ
Neurologie هغه پوهه ده چې اعصاب او د اعصابو
ناروغۍ څېړي یا ورڅخه بحث کوي یا اعصاب پیژاندنه کوي
Neurom د اعصابو پاړسوب یا دانه چې تر ډېره کچه
ښه،سلیم یا بې ضرره وي

Neuromuskulaer هغه ناروغۍ چې اعصاب
او عضلې ورسره مخامخ یا مصاب کوي
Neuropathie = Polyneuropathie, Neuritis د اعصابو ناروغۍ
عصبي ناروغې چې ورته پولینایروپاتي، نایریټز هم وایي
Neuroradiologie د وړانګو یا رادیولوژۍ په مرسته
د عصبي سیستم د ناروغیو پیژاندنه او وروسته د هغو درملنه
Neurose د اعصابو ناروغه حالت په تېره په رواني او
یا رواني ټولنیزه یا اجتماعي ستونځو کې بې له دې چې
کومې اورګانیکې ناروغۍ وپېژاندلې شي یا شتوالی ولري
neurotic کله چې انسان د عصبي او یا رواني حالاتو
روغتیایي بدلونونو او ناخوالو سره لاس او ګریوان یا مخامخ وي
neurotoxic هر هغه شئ یا مواد لکه ځینې درمل
چې د عصب یا اعصابو د ژوبلیدنې لامل ګرځي
نایروټوکسیک بلل شوي
Neurotoxin عصبي زهري کېدل، هر هغه مواد
چې عصبي تسموم مینځ ته راوړي
neurotrop هغه څه چې په عصب اثر کوي
Neurovaskulaer هغه څه چې اعصاب او
د وینې رګونه اخته کوي، ککړ یا مصاب کوي یعنې
هغو ناروغیو سره چې اعصاب او د وینې رګونه مخامخ وي

Nodus غوټې، ګره، غدې
Nomen, Nominis, Name نوم، اسم
Nonus, novem (IX) د نه (9) عدد

Noradrinalin = Norepinephrin نورادرینالین هغه هورمون
دئ چې په بدن کې د بډوډي د پاسه غدې څخه توېږي
یا افراز کېږي او همدارنګه د کاټیکولامین له ډلې شمیرل کېږي

normo- (lat. Norma = normal) نورمال، منظم، مرتب،بې زيانه
Normochrom له نورماله رنګه، نورمال رنګ شوي
Normochrom Erythrocyt د وينې سره ژوانکه
له نورمال يا اصلي رنګ سره، د وينې يوه سره ژوانکه چې
د نورمال هيموګلوبين لرونکې وي
Normochrom Anaemie د وينې هغه غربت
يا د وينې هغه لړوالئ، کمخوني ښودنه کوي چې د يوه
نورمال هيموګلوبين درلودونکې وي
normotrop په نورماله، منظمه سيمه يا ټاټوبي کې

Nucha (lat.) پشت ګردن، څټ،د ورمېږه شا خوا

Nucleolus هستوي اجسام، د ژوانکې په مينځني سيمه
يا په هسته کې پراته جوړښتونه
Nucleolemma د هستې پرده، دهستې غشا
Nucleolus هستوي اجسام
Nucleus (lat.) دژوانکې هسته، د ژوانکې مينځني برخې
Nucleus د يو جسم هسته،د يو شي مينځني برخه يا سيمه
Nullipara هغې ښځې چې تراوسه يې هيڅ
ماشوم نه وی زېږولئ يا دنيا ته نه وي راوړئ

-para (lat. Parere) د کلمې هغه وروستۍ برخه ده
چې له لاتينې کلمې پارير څخه اخستلې شوې
چې زيږونکې معنی ورکوي
uni- يو، يوه، هغه يوه لکه دا لاندې
Unipara يوه ښځه، کومې چې يا هغې چې
يوازې يو ماشوم زيږولئ يا دنيا ته راوړئ وي
primi- (lat. Primus) لومړئ، لومړنئ لکه دغه لاندې
Primipara لومړني زېږونکې ښځه يا مور

multi- (lat. Multus) ډېر، زيات لکه دا لاندې
Multipara يوه ښځه چې دوه يا له دوه څخه
ډېر ماشومان يا بچيان نړي ته راوړي وي

nykt- (gr. Nýx) نيکت له يوناني ژبې نيکز يا نيکس
څخه اخستلې شوې چې شپه، شب نومېږي
Nykturie د شپې له خوا ډېر ادرار کول
Nymphomanie (gr.) = Hypersexualitaet د ښځو د شهواني
قوې يا شهوت ډېروالئ له مخالف جنس يا نارينه سره

# O

Obduktion (lat. Obdurare) مخ په وړاندې ښودل، مخ
په وړاندې رهبري کول، له مرکز يا مينځني سيمې څخه
چې موخه ترې تني يا بدن له محور څخه لرې کول، پريکول
دي همدارنګه کله ناکله ورته نومونه لکه سيکشن، اوټوبسي
هم پکارول شي
Obex, obicis (lat.) دا بيلابيلې معنى
Objektiv
obliquus مايل، کوږ، منحرف
occiput, occipitis (lat.) د سر يا کوپړي د څټ سيمه
چې د کوپړۍ شا ورمېږه سره اړيکې لري
octavus = octo- اتمه، د يو شي اتمه برخه
octo = VIII = د اته(8) عدد اصلي عدد، اساسي عدد
octavus = ترتيبي عدد

Oculo-, okulo-, ophthalmo- (gr. Ophthalmós = lat. Oculus)
سترګې، سترګه

oculus (lat.) اوکولوس یوه لاتینه کلمه ده چې سترګې ته وايي
odeno- غاښ

odento- (gr. odús, odóntos) له یوناني کلمې څخه
اخستلې شوي چې موخه یا مقصد یې غاښ ده
Odentalgie = Odontodynie د غاښ درد
Odentitis د غاښ التهاب، هدف ترې د غاښ د ووریو
یا د غاښ د غوښې التهاب
Odentodynie د غاښ درد
Odentogen له غاښونو څخه مینځ ته راغلې ناروغۍ
Odentogenese د غاښ پر مختګ، د غاښ وده
Odentologie هغه علم دئ چې د غاښو ناروغۍ او
د هغو درملنه څېړي، د غاښو طب
Odentopathie د غاښ یا غاښونو ناروغۍ
odor, - oris د بویولو حس، د شامعې حس

-odynie د کلمې هغه وروستۍ برخه ده
چې درد، خوږ معنی ورکوي لکه دا لاندې
Gloss odynie د ژبې درد، درد زبان
Pleur odynie د پلایرا درد، پلورا درد
Om odynie

Oedem (gr. Oídema) = Hydrops پاړسوب، هغه درد
نه لرونکي او سور رنګ نه لرونکئ پاړسوب چې د بدن
په بیلابیلو ځایونو کې د ځینو ناروغیو له کبله د اوبو ته
ورته مایعاتو د تولیدنې له امله مینځ ته راځي
Kardial Oedem هغه پاړسوب چې د زړه
د ناروغي له کبله پېښېږي

Oedematos پە ټولیزە توگە یا خپرە شوې اوډیما
یا اوذیما پدې معنی چې پە ټول بدن کې د اوبو دې
ټولېدنو روږدوالئ

Oesophago- = Oesophagus (gr. Oísein لېږدونە، تېرونە
phágema خواړە، غذا د خوړو د لېږدونې لارە، د خوړو
د تیرونې لارە یا نل یە وایي چې لە یوې یوناني کلمې
څخە اخستلې شوې دە
Oesophageal هغە څە چې د خوړو مرۍ یا نل ورسرە
مخامخ وي
Oesophagektomie لرې کول یا پرې کول د اویزوفاگوز، اوزوفاگوز
Oesophagitis د خوړو د مرۍ د موکوز پە سیمە
کې د لامیناپروپریا التهاب، تر ډېرە حدە د ریفلوکس
اویزوفاگیتیز لە املە مینځ تە راځي ،د اوزوفاگوز التهاب
Oesophagodynie د اوزوفاگوز درد
Oesophagoenterostomie د جراحي عملیات پە مرستە
د اوزوفاگوز نوي اړیکې لە کولمو سرە
Oesophagogastrostomi د جراحي عملیات پە مرستە
د اوزوفاگوز او معدې تر مینځ نوې اړیکې جوړول
Oesophagographie د رادیو لوژي وړانگو پە مرستە
د اوزوفاگوز ښودنە او د ناروغي پلټنە
Oesophagoileostomie د اوزوفاگوز نوي اړیکې لە الیوم
سرە د جراحي عملیات پە مرستە
Oesophagojejunostomie اوپراتیفي نوي اړیکې یا یوځایوالئ
د اوزوفاگوز او دخالي کولمو یا
جیجونوم تر مینځ
Oesophagokolostomie د جراحي عملیات پە مرستە
د اوزوفاگوز نوې اړیکې لە کولون سرە

Oesophagopathie د خوړو تیرولو د لارې ناروغۍ
Oesophagoskopie د اندوسکوپ په مرسته د اوزوفاګاز
لیدنه او پلټنه
Oesophagospasmus د اوزوفاګوز تشنج، شخوالئ
یا د خوړو د تیرولو د لارې د عضلاتو شخوالئ یا کرمپ
Oesophagotomie په اوپراتیفي توګه د اوزوفاګوز
پرانستل، خلاسول
Oesophagus(lat. ) اوزوفاګوز یوه لاتینه کلمه ده چې
د خوړو یا غذایي موادو دتیریدنې، لېږدونې لاره معنی لري
Oesophagusatersie congenital په کانجینیتل ډول یا
د زېږون له وخته د اوزوفاګوز یا د خوړو د لېږدولو د لارې
بندښ یعني خواړه نه تیرېږي او بند پاتې کېږي
Oesophagusektasie, abnormale په غیر نورمال یا غیر
اناتومیک ډول د اوزوفاګوز پراخوالئ ، پلنوالئ، د قطر پراخوالئ
Oesophaguskarcinom اوږد محاله التهاب د اوزوفاګوز
کیداي شي چې لومړئ د چنګاښ یا سرطان سرچینه
یا منشه وي او وروسته په سرطان واوړي
Oesophagusruptur د اوزوفاګوز په دیوال یا جدار کې
چاودیدنه، د اوزوفاګوز چاودیدنه
Oesophagusstenose د خوړو د لېږدونې یا تیرونې
د لارې یا اوزوفاګوز تنګوالئ

-oid or -id (gr. Eidés) اوئید یا اید د کلمې هغه
وروستۍ برخه ده چې ورتوالئ، شباهت معنی ورکوي
Karzinoid کارسینوئید یعنی کانسر یا سرطان
ته ورته،متشابه
Adenoid غوټو یا غدو ته ورتوالئ
Lymphoid لمف ته ورتوالئ

okto (8)
okul سترګه
okulo- /oculo- /ophthalmo- (gr. Ophthalmós = lat. Oculus)
سترګه
Okular سترګې پورې اړه درلودل، سترګه
olecranon
olfactus
Sensus olfactus د بویولو حس، د شامعې حس
لکه پزه، پوزه

oligo- (gr. Olígos) لږ، وړوکئ، لږوالئ، لږکول یا کمول
Oligocysthaemie د وینې د ژوانکو په شمېر کې
له حده ډېر لږوالئ، کموالئ
Oligodontie د غاښونو په شمیر کې زښته زیات لږوالئ
Oligomenorrhoe په ښځینه جنس کې په ندرت سره یا ډېر
لږ شانته د میاشتنۍ خونریزي پېښېدلو پروسې ته ویل کېږي
Oligurie د متیازو یا ادرار په جوړیدنې کې لږوالئ
د ادرار په بهر کیدلو لږوالئ
-om, (gr. -oma, -omat) = Tumor) د یوې یوناني کلمې
وروستۍ برخه ده چې پړسوب، دانه، نوئ جوړشوئ یا
نوئ پیدا شوئ جوړښت، تومور ته وایي
Angiom د وینې په رګونو کې دانه یا نوئ مینځ
ته راغلئ جوړښت
Chondrom د غضروفو ښه، بې ضرره(سلیم) دانه، تومور
Hepatom د لړمانه خبیثه دانه، د ینې سرطان
Myom میوم یو بې زیانه د عضلو پړسوب یا دانه
ده، میوم په یوټیروس کې کولای شي د میاشتنۍ
وینې بهیدنې او د هغې د غیر نورماله زیاتوالی لامل وي

Omentopixie د اومینتوم ټینګوالی یا تثبیتول
Omentum (lat. Epiploo-) اومینتوم له یوې لاتینې
کلمې اپیپلوو څخه اخستلې شوې ده چې جال یا جالی لکه
د کبانو د نیولو جال معنی ورکوي
omo-(gr. Omos ) ولئ، شانه
Omodynie, Omalgia = Periarthropathia humeroscapularis
د ولی درد
Omohyoideus
Musculus omohyoideus
omphalo- ( gr. = lat. Umbilicus) د نامه غوټی، ناف

onko- (gr. Ónkos) پاړسوب، تورم
Onkogen پاړسوب زیږوونکئ، پاړسوب مینځ
ته راوړونکئ، پاړسوب په څنګ کې لرونکئ
Onkologie اونکولوړي یا اونکولوژي د دنني طب یا داخلې
یوه برخه ده چې د دانو یا پاړسوب، تومور د مینځ ته راتګ او
د هغو له کبله پیښې شوې ناروغیو څیړنه او یایي پلټنه کوي

onycho- (gr. Onychos = lat. unguis) نوک، نوکان، ناخن
Onychitis د نوک یا نوکانو د بستر التهاب
Onycholyse د نوک یا نوکانو د ټوټه کول، منحل کول
Onychomalazie د نوک یا نوکانو خوړینیدل، نرمیدل
Onychomykose نوکانو ته د پوپنکو له کبله رامینځ
ته شوې ناروغی
Onychophagie د نوکانو خوړل

oo- = ovo- (gr. Oón = lat. Ovum) هګی، تخم
Oocyt / Ovocyt د سپرموزوم زایګوټ، د هګی ژوانکې

Oogenese / Ovogenese د هګۍ د ژوانکو پرمختګ
د پخیدلو یا رسیدلو په لور
Oophorektomie د هګۍ لرې کول
Oophoritis د هګۍ ساتونکې یا تخمدان التهاب
البته چې دلته هدف ورڅخه په ښځینه جنس کې د جنسي غړو له ډلې، جملې څخه شمېرل کېږي
oophoro- (gr. Oophóros = lat. Ovarium) تخمدان
op,ops, opt (gr.) Óps = سترګه, ópsis = لیدل، کتنه
له یونانی کلمې څخه چې سترګه، لیدنه نومول شوې
ده اخستلې شوې
Operabel د جراحي عملیات وړ، په قصدي توګه
د یوه جراحي عملیات په مرسته درملنه
Operation (lat. Operari , Operatio) اوپیریشن
له لاتینې کلمې اوپیریري یا اوپیراسیو څخه چې کارکول او
دې طبي سامانونو یا آلو په مرسته یو کار د درملنې لپاره
سرته رسول نومېږي اخستلې شوي
septic مکروبي، ناولتیا، چټل
transurethrale د ادرار له لارې یا د احلیل
له مینځه تېرېدلو له لارې
ophthalmo- (gr. Ophthalmòs =lat. Oculus سترګه)
Ophthalmie (gr. Ophthalmìa ) د سترګې یا سترګو
ناروغۍ لکه د سترګو التهاب
Ophthalmologie هغه پوه یا علم دئ چې سترګه
یا سترګې تر څېړنې لاندې نیسي،د سترګو طب
ophthalmologic هغه څه چې سترګې پورې اړه لري
Ophthalmopathie د سترګو ناروغۍ
Opthalmoplegie د سترګو د عضلاتو د دندې سرته
رسولو کې سستي یا فلج

Ophthalmoskopie د يوې الې په مرسته د سرگو كتنه، ليدنه

-opie, -opsie = optik لیدنه ، كتنه
An opie د سترگې د دندې له لاسه وركول يا ړندوالئ
Hemi an opie د يوې خوا ړوندوالئ، كله چې
يوه سترگه ړنده وي

Nekropsie د مړي يا جسد ليدنه
opponens (musculus) د عضلاتو مقابل، متضاد قرار
درلودل برخلاف عمل كول لكه دغه لاندې عضله
Musculus opponens هغه عضله چې د يوه عمل
برخلاف دنده تر سره كوي
Optik ،opt ليدل، كتل د هغې پوهې څخه بحث
كېږي چې وړانگې، رڼا، روښاني څېړي
Nervus opticus د ليدلو عصب (د دماغ دويم عصب)
ته وايي
Optometrie اوپتوميتري دې سترگو خاصې ستونځې
اندازه كوي يا د ليد اندازه كولو ته وايي

oral (lat. Oris ) هغه څه چې خوله، دهن ورسره
مخامخ وي، ورپورې اړه لري
aboral هغه څه يا شئ چې له خولې څخه لري
پراته وي يا لرې واټن ولري
orbita (lat.) د سترگو كاسې
orbitalis كوم شيان چې دسترگو پورې اړه لري
Septum orbitale د سترگو د كاسو تر مينځ
پرته پرده يا بېلونكئ ديوال
Orbitafraktur د سترگو دكاسې د هډوكو يا ديوال ماتيدنه

orbital هغه څه چې د سترګو کاسې پورې اړه لري
Orchialgie د خوټو، خصيوو يا ټيسټيز درد

orcho-/ orchi- ،orchio- / orchido- (gr. Órchis, órchios = lat. Testis) خوټې، ټيسټيز
Orchiektomie/ Orchiektomie, Testis = د تيستيز لري کول
د تيستيز پريکول، لرې کول
Orchidopexie/ Orchipexie د جراحي عمليات په مرسته د تيستيز ټينګول د تيستيز په کڅوړه کې
Orchitis = Didymitis د تيستيز التهاب
Organ(gr. Órganon) د کار کولو وسايل،د بدن هغه برخې يا غړي چې ځانګړي دندې په غاړه لري
organell وړوکئ غړئ يا وړوکئ اورګان لکه ميټوښاندريون يا ميټوخاندريون
Mitochondrion
Organismus په يوه ژوندي بدن يا جسم کې د اورګانونو يا غړو ټوليزه سيستم يا مکمل سيستم ته وايي

Origo (lat.) ټبر، نسب،اصل
oropharyngeal هغه شيانو سره چې خوله او ستونئ يا حلق مخامخ کيږي

ortho- (gr. Orthòs) سيخه،راست،مستقيم،ريښتينئ، صحيح
Orthodontie غاښو ريښتينئ يا طبعي
اناتوميک جوړښت، صحيح موقف ، د غاښو ريښتينئ جوړښت لکه د هغوي شکل، کوږوالئ او داسئ نور يا په بې ځايه سيمه کې شتون ونلري

Orthopaedie (gr. Paideía) پیدیا پالل شوئ
ماشوم نومول شوئ خو اورتوپیدي له یوناني کلمې پیډیا
څخه چې ماشوم ته وایي او اورټا چې د کلمې هغه برخه
ده چې د سیخې، مستقیمې معنی لري خو په طبابت
کې هغه تخصصي برخه ده چې د ماشوم ټول حالت
له جوړښته تر ناروغی د ډیرون له وخته یا په کسبي توګه
تر لاسه کړې وي او د هډوکو د شکل، دندې د ساتنې
او خوځښتي غړي چې هدف ترې هډوکي دي څېړنې
او پیژاندنې ته وایي یعنی هغه پوهه یا علم ده چې دهډوکو
د جوړښت، شکل، خوځښتونو او د دندې ستونځې،لږوالئ
Orthopnoe د ډیرې پرمختللي ساه لنډئ یادیسپنې
حالت ته وایي چې یواځې په هغه ناسته چې سیخه
یا مستقیمه وي یعنی نیمایي پورتنی تنه لوړه قرار ولري
ګټوره یایي اسانئ یا سهولت کېږي
Orthostase د انسان د تنې یا بدن دریدل
یا قرار په سیخه یا مستقیمه توګه

Os, oris (lat. = gr. Stomato-, stomacho- خوله، دهان
پرانستل، خلاصول اوس یا اورز یوه لاتینه کلمه ده چې
نسبتي یا ګینیتیف حالت یې اوریز ده چې خوله، مخ
سترګې نومول شوي
( pl. Ora, orum!) د خولې جمعه
**پاملرنه** : اورا سیراتا «غاښ لرونکې یا دندانه لرونکې
څنډې» نومېږي چې دا اورا، اورم له څنډې یا لبه څخه
اخستلي شوي چې باید له اوس ، اورس څخه وپېژاندل شي

Rima oris د خولې درز، چاودونه، چاک، شکاف